# عقیدوی درسونه

## (معالم الدین)

لیکوال:

**عبد العزیز مطیری**

ژباړن:

**أبو زکریا إسماعیل الأفغانی**

## دا کتاب د عقيدې د کتابخانې سايت نه داونلود شوی دی.

## www.aqeedeh.com

برښنا لیک: book@aqeedeh.com

### په فارسی ژبه کې ځینی مفید سایټونه:

www.aqeedeh.com
www.islamtxt.com
www.shabnam.cc
www.kalemeh.tv
www.islamtape.com
www.blestfamily.com
www.islamworldnews.com
www.islamage.com
www.islamwebpedia.com
www.islampp.com
www.zekr.tv

www. mowahedin.com
www.sadaislam.com
www.islamhouse.com
www.bidary.net
www.tabesh.net
www.farsi.sunnionline.u
www.sunni-news.net
www.mohtadeen.com
www.ijtehadat.com
www. nourtv.net
www.videofarsi.com

بسم الله الرحمن الرحيم

## د کتاب فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

## د مؤلف سريزه

إِنَّ الْحَمْدَ لِلَّهِ نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ، وَنَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا، وَمِنْ سَيِّئَاتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَهْدِهِ اللَّهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ، وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، أما بعدُ:

بې له شکه هغه څه چه بنده ورته د هر څه نه مخکښې ډير اړين او زده کول يې ورباندې فرضي او لازمي دي هغه دا دي چه بنده هغه څه زده کړي چه خپل دين ورباندې صحيح وپيژني، ترڅو پرې د الله ﷻ له قهر او غوصې او د هغه د دردناک عذاب څخه ځان وژغوري، او ورسره د الله ﷻ رحمت او لويه مهرباني لاس ته راوړي.

ما په دې کتاب کښې د اسلام د مقدّس دين بنسټونه او اساسات د ډيرو آسانو درسونو په شکل راټول کړي دي، تر څو يو زده کونکې د اسلام د

مقدّس دین دغه اساسات او بنسټونه وپیژني، او هم هغه څه نه خبر شي چه یو بنده وربانديي مسلمان ګڼل کیږي، او هم له نورو دینونو څخه د اسلام د مقدّس دین بهتري او غوره والې او ښایست وپیژني، او ددي په مقابل کښی د کفر له خطر او بدبختی څخه خبر شي، او ددي ترڅنګ هغه څه هم وپیژني چه د بنده دین او ایمان له منځه وړي او یا یي کمزورې کوي ترڅو وکولې شي ځان ورڅخه وژغوري.

خو د یادونی وړ ده چه ما په دی کتاب کښی د اسلام د اساساتو او بنسټونو څخه یواځی هغه ډیر اړین او مهم مسایل راوړي دي چه پر بنده باندي یي زده کول او وربانديي عمل کول تر هر څه نه مخکښی فرض او لازمي وي، تر څو د لومړنیو زده کونکو لپاره تګ لاره وي، او د پوهانو لپاره یادګیرنه او نصیحت وي، او د ښوونکو لپاره تیارې او یادونه وي.

د لوئ الله ﷻ څخه سوال کوم چه زما دا کار له ما څخه په ډیر ښه ډول قبول کړي، او ورپکښی برکت واچوي، او خلکو ته پری ګټه ورسوي؛ بیشکه الله ﷻ په ډیر ښو صفتونو ستایل شوې اود ډیری لویي خاوند دې.

## د شهادت کلمه، معنی او غوښتنی يي

د شهادت کلمی څخه هغه معلوم او معروف الفاظ مراد دي چه: «أشهد أن لا إله إلاّ الله، وأشهد أن محمداً رسول الله».

دغه دواړه ګواهۍ د اسلامي دين بنسټ او لمړنې رکن دې، په کوم چه يو بنده د اسلام په مقدس دين کښې داخليږي، نو که څوک دغه دواړه ګواهيو باندی ګواهي ونکړي مسلمان کيدې نشي.

لکه چه عبد الله بن عمر رضي الله عنهما له رسول اللهﷺ څخه روايت کوي چه هغه فرمايلي دي:

«بُنِيَ الإِسْلاَمُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لا إله إلا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ وَإِقَامِ الصَّلاَةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَحَجِّ الْبَيْتِ وَصَوْمِ رَمَضَانَ». [متفق عليه]

ترجمه: «د اسلام دين په پنځه بنستونو باندي جوړ او ولاړ دې:

لمړې: ددي خبری ګواهي کول چه د عبادت او بندګی مستحق او لايق بل هيڅ څوک نشته مګر يواځی الله جلّ جلاله دې، او محمد ﷺ د الله تعالی ريښتينې پيغمبر او ستاذې دې.

دوهم: (په شپه او ورځ کښی پنځه وخته پوره له حقوقو سره) لمونځ ادا کول.

دریم: د خپل مال زکات ورکول.

څلورم: د بیت الله شریف حج کول.

پنځم: د رمضان د مبارکې میاشتې روژه نیول». (دا حدیث شریف په صحیح بخاري شریف او صحیح مسلم شریف کښې روایت شوې دې).

نو په اسلام کښې لمړنې فرض دا دي چه تر هر څه دمخه د لمړني بنسټ معنی او احکام زده کړل شي؛ ځکه رسول اللهﷺ چه کله معاذ بن جبلرضي الله عنه یمن ته د یو داعي، بلونکي او ښوونکي په صفت لیږلو نو ورته یي وفرمایل: «إِنَّكَ سَتَأْتِي قَوْمًا أَهْلَ كِتَابٍ فَإِذَا جِئْتَهُمْ فَادْعُهُمْ إِلَى أَنْ يَشْهَدُوا أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذَلِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ... الحديث». [متفق علیه]

ترجمه: «بیشکه ته داسې خلکو ته ورتلونکې یې چه هغوي اهل کتاب او کتابیان دي، نو لومړې یې باید ددې خبرې منلو ته راوبلې چه: نشته ورړ، لایق او مستحق دعبادت او بندګۍ مګر یواځې یو الله جلّ جلاله دې، او زه- یعنی محمدﷺ - دالله تعالی ریښتینې پیغمبر او استاذې یم، که هغوي درسره دا خبره ومنله، نو بیا ورته وښایه چه الله ﷻ پر دوي په هره شپه ورځ کښې پنځه لمونځونه فرض کړي دي...» الحدیث.

دا حدیث شریف په صحیح مسلم شریف کښې له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت شوې دې.

او په صحیح بخاري شریف کښې یې بیا لفظ داسې دې: «فَلْيَكُنْ أَوَّلَ

مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ عِبَادَةُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ».

ترجمه: يعنی «ستا لمړنی بلنه دی هغوي ته دا وي چه هغوي دی يوائی يو الله ﷻ د عبادت او بندګی مستحق او لايق وګنی...».

ددي خبری بيان او وضاحت د جبريل ﷺ په هغه اوږد حديث شريف کښی هم راغلی دي چه په هغه کښی جبريل ﷺ له رسول الله ﷺ څخه ددين د مراتبو په هکله پوښتنه کوي: چه هغه اسلام، ايمان او احسان دي، او بيا رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو ؓ ته وفرمايل: دا پوښتنه کونکی جبريل ﷺ وو، تاسو ته ددي لپاره راغلی وو چه تاسو ته ستاسو دين درزده کړي.

نو ددين له کارونو څخه تر ټولو لومړنی هغه کار چه تر هر څه دمخه يي زده کول فرض دي، هغه هم هغه څه دي چه د جبريل ﷺ په دغه حديث کښی راغلي دي.

او ددين لومړنۍ مرتبه اسلام دي، او د اسلام لمړنی بنسټ دغه دوه ګوني ګواهی دي.

## لمړی درس:
## د «شهادة أن لا إله إلاَّ اللَّه» معنی

یعنی نشته وړ، لائق او مستحق د عبادت او بندګۍ مګر یواځی یو الله تعالی دی.

د «إلٰه» معنی مألوه، یعنی معبود دی، نو ټول هغه عبادتونه او بندګی چه د الله تعالی پرته بل چا ته کیږي هغه باطل عبادت دی، او هغه څوک چه د الله تعالی پرته د بل چا عبادت او بندګي کوي هغه مشرک او کافر ګڼل کیږي، لکه چه الله ﷻ فرمايي: ﴿وَمَن يَدۡعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ لَا بُرۡهَٰنَ لَهُۥ بِهِۦ فَإِنَّمَا حِسَابُهُۥ عِندَ رَبِّهِۦٓۚ إِنَّهُۥ لَا يُفۡلِحُ ٱلۡكَٰفِرُونَ ١١٧﴾ [المؤمنون: ۱۱۷].

ترجمه: «او هغه څوک چه د الله ﷻ سره بل معبود هم رابلي چه له ده سره هیڅ ډول دلیل ورباندی نشته، نو بیشکه دده حساب کتاب د الله تعالی سره دی، بیشکه شان دادي کافران کامیابیدي او سرفراز کیدي نشي».

نو هیڅکله روا نه ده چه د الله ﷻ سره د بل چا عبادت او بندګي وشي، دا بل څوک که لیږل شوي پیغمبر وي، او که کوم مقرّب ملائک وي، او که د نیکانو او اولیاو له جملی څخه کوم ولي وي، او که ونه، یا تیګه وي، او که کوم بل شی وي؛ ځکه عبادت او بندګي یواځی د الله ﷻ حق دی، چه

مونږ الله تعالی د همدی خپلی بندګۍ او عبادت لپاره پیدا کړي یو، لکه چه الله ﷻ فرمايي:

﴿وَمَا خَلَقْتُ ٱلْجِنَّ وَٱلْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ۝٥٦﴾ [الذاريات: ٥٦].

ترجمه: «ما پیریان او انسانان نه دي پیدا کړي مګر ددي لپاره چه یوائی ځما عبادت او بندګي وکړي».

همداراز فرمايي: ﴿قُلْ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ۝١﴾ [الإخلاص: ١]. «أي پیغمبره خلکو ته بیان کړه چه شان دا دې: چه الله ﷻ معبود برحق همدا یو دې».

همداشان فرمايي:

﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ ۖ لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلرَّحْمَٰنُ ٱلرَّحِيمُ ۝١٦٣﴾ [البقرة:١٦٣].

ترجمه: «معبود برحق او ستاسو د عبادت او بندګۍ مستحق او لايق یوائی یو معبود دې، نشته بل مستحق د عبادت او بندګۍ مګر یوائی یو الله ﷻ دې چه ډیر زیات مهربان او ډیر بخښونکې دې».

همداراز الله تعالی په بل ځاي کښی فرمايي:

﴿هُوَ ٱلْحَيُّ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَٱدْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ﴾ [المؤمن: ٦٥].

ترجمه: «الله ﷻ هغه ذات دې چه دایمی او ازلي ژوندې دې، نو نشته مستحق د عبادت او بندګۍ مګر یو الله تعالی دې، نو همدغه الله راوبلۍ او چیغی ورته ووهۍ، په داسی حال کښی چه خالص کوونکي یاست الله لره د خپل عبادت او بندګۍ».

او همدا د توحید معنی ده، او هغه دا چه الله تعالی په عبادت او بندګۍ

کښې يو وګڼل شي، او يوائې دهمهغه عبادت او بندګي وشي، نو مونږ يوائې د همغه الله تعالی عبادت او بندګي کوو چه يو دې او هيڅ ډول شريک او برخَوال نلري.

او دهمدی توحيد د تحقيق او پلي کولو لپاره اللهﷻ ټول پيغمبران راليږلي دي، او همدا توحيد د (**لا إلهَ إلاَّ الله**) معنی ده، لکه چه اللهﷻ فرمايي: ﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِيٓ إِلَيۡهِ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعۡبُدُونِ ٢٥﴾ [الأنبياء: ٢٥].

ترجمه: «مونږ نه دې ليږلې پخوا له تا څخه هيڅ يو پيغمبر مګر مونږ ورته وحي کړې ده ددي خبرې چه شان دا دې نشته لايق د عبادت او بندګۍ مګر همدا زه يم، نو يوائې ځما عبادت او بندګي وکړئ».

همدا شان الله ﷻ په بل ځای کښې فرمايي: ﴿وَلَقَدۡ بَعَثۡنَا فِي كُلِّ أُمَّةٖ رَّسُولًا أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱجۡتَنِبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ﴾ [النحل: ٣٦].

ترجمه: «او بې شکه مونږ ليږلي دي په هر امت کښې يو يو پيغمبر په دې خبره چه يوائې د يو الله ﷻ عبادت او بندګي وکړئ اود طواغيتو له عبادت او بندګۍ ځينی ځان وساتئ».

الله ﷻ د خپل کتاب په بيلابيلو ځايونو کښې د پخوانيو پيغمبرانو او دهغوئ د قومونو قيصې بيان کړې دي، او دا يي راته واضحه کړې ده چه ددغه ټولو پيغمبرانو لمړنې دعوت او مسأله توحيد او د الله تعالی يووالي ته بلنه وه، او هم يې راته دهغه مومنانو ښه انجام بيان کړې دې چه د پيغمبرانو

دعوت او بلنه يي منلی وه، او دهغه کفارو بد انجام يي راښوولې دې چه پیغمبرانو ته يي دروغجن ویلي وو، او د الله تعالی سره يي شرک کړې وو، حال دا چه په دغه شرک باندي د الله تعالی لخوا ورته هیڅ کوم دلیل نه وو راغلې.

لکه چه الله تعالی فرمايي:

﴿لَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوۡمِهِۦ فَقَالَ يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرُهُۥٓ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيمٖ ۝٥٩﴾ [الأعراف: ٥٩].

ترجمه: «بیشکه یقیناً مونږ لیږلې وو نوح ؑ خپل قوم ته پیغمبر، نو هغه ورته ویلي وو: أی ځما قومه ! عبادت او بندګي وکړئ یواځی د یو الله تعالی؛ ځکه نشته تاسو لپاره بل رښتينې مستحق د عبادت او بندګۍ پرته د الله تعالی څخه بل څوک، بیشکه زه ویریږم پر تاسو د عذاب د هغه ورځی لوي څخه چه قیامت دې».

همداشان دهود ؑ په هکله فرمايي:

﴿۞وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمۡ هُودٗاۚ قَالَ يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرُهُۥٓۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ۝٦٥﴾ [الأعراف: ٦٥].

ترجمه: «او لیږلې مو وو عادیانو ته د هغوئ نسبي ورور هود ؑ نو هغه ورته ویلي وو: أي ځما قومه ! یواځی د یو الله تعالی عبادت او بندګي وکړئ؛ ځکه نشته تاسو لپاره د الله تعالی پرته بل معبود برحق، نو آیا تاسو له دغه الله تعالی څخه نه ویریږئ؟».

او د صالح عليه السلام په هکله فرمايي:

﴿وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًاۚ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ﴾ [الأعراف: ۷۳].

ترجمه: «او ليږلي مو وو ثموديانو ته د هغوئ نسبي ورور صالح عليه السلام نو هغه ورته ويلي وو: أي ځما قومه ! يواځی د يو الله تعالی عبادت او بندګي وکړئ؛ ځکه نشته تاسو لپاره بل د عبادت او بندګی مستحق پرته له الله جل جلاله څخه».

همداراز دشعيب عليه السلام په هکله الله تعالی فرمايی:

﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًاۚ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥۖ﴾ [الأعراف: ۸۵].

ترجمه: «او د مدين اوسيدونکو ته الله د هغوئ نسبي ورور شعيب عليه السلام ليږلي وو، نو هغه ورته ويلي وو: أي ځما قومه ! يواځی د يو الله تعالی عبادت او بندګي وکړئ؛ ځکه نشته تاسو لپاره بل د عبادت او بندګی مستحق پرته له الله جل جلاله څخه».

او د ابراهيم عليه السلام نه هم دغه شان الله سبحانه وتعالى حکايت کوي او فرمايي:

﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦٓ إِنَّنِى بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُونَ ﴿٢٦﴾ إِلَّا ٱلَّذِى فَطَرَنِى فَإِنَّهُۥ سَيَهْدِينِ ﴿٢٧﴾﴾ [الزخرف: ۲۶-۲۷].

ترجمه: «او ياد کړه هغه وخت چه ويل ابراهيم عليه السلام خپل پلار او قوم ته: بيشکه زه له هغه چا څخه بيزار يم چه تاسو يي عبادت او بندګي کوئ، مګر

خو بیزار نه یم د هغه الله تعالی نه چه زه یي پیدا کړې یم، نو همهغه به راته سمه لار راوښایي».

همداشان الله تعالی فرمایی:

﴿أَمۡ كُنتُمۡ شُهَدَآءَ إِذۡ حَضَرَ يَعۡقُوبَ ٱلۡمَوۡتُ إِذۡ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعۡبُدُونَ مِنۢ بَعۡدِيۖ قَالُواْ نَعۡبُدُ إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ ءَابَآئِكَ إِبۡرَٰهِـۧمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ وَإِسۡحَٰقَ إِلَٰهٗا وَٰحِدٗا وَنَحۡنُ لَهُۥ مُسۡلِمُونَ ١٣٣﴾ [البقرة: ۱۳۳].

ترجمه: «آیا تاسو هغه وخت حاضر وی کله چه یعقوب عليه السلام ته مرګ راغې، او کله چه یي خپلو ځامنو ته وویل: له ما نه وروسته به د چا عبادت او بندګي کوئ؟ ځامنو یي ورته وویل: مونږ به دهغه الله عبادت او بندګي کوو چه ستا معبود دې او هم ستا دپلرونو معبود دې، چه دغه ستا پلرونه ابراهیم اسماعیل او اسحاق علیهم السلام دي، په داسی حال کښی چه ددوي د ټولو معبود همدا یو الله تعالی وو، او مونږ هم همدغه الله تعالی ته غاړه ایښودونکي یو».

همدغه ډول بلنه یوسف عليه السلام هم په محبس (زندان) کښی خپلو ملګرو ته وړاندی کړه لکه چه فرمایي:

﴿ءَأَرۡبَابٞ مُّتَفَرِّقُونَ خَيۡرٌ أَمِ ٱللَّهُ ٱلۡوَٰحِدُ ٱلۡقَهَّارُ ٣٩﴾ [یوسف: ۳۹].

یعنی: «آیا مختلف او بیلابیل معبودان ښه دي چه عبادت او بندګي یی وشي او که یواځی یو الله جل جلاله چه یو دې او هم قهار دې».

او همدغه دعوت او بلنه زمونږ د خوږ پیغمبر محمد ﷺ هم وه لکه چه

الله ﷻ ورته فرمايي:

﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ إِلَّا رَحۡمَةٗ لِّلۡعَٰلَمِينَ ١٠٧ قُلۡ إِنَّمَا يُوحَىٰٓ إِلَيَّ أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمۡ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞۖ فَهَلۡ أَنتُم مُّسۡلِمُونَ ١٠٨﴾ [الأنبياء: ١٠٧-١٠٨].

ترجمه: «مونږ ته- أي محمده !- نه یي لیږلې مګر خو مو لیږلې یي رحمت د عالمیانو لپاره، ورته ووایه أي پیغمبره ! بیشکه ما ته وحي کیږي ددي خبری چه بیشکه ستاسو معبود یو الله تعالی دې، نو آیا تاسو غاړه ایښودونکي یاست هغه ته؟»

زمونږ پیغمبر محمد ﷺ هم په مکه مکرمه کښی دخپل دعوت شروع له توحید څخه کړی وه، خپل قوم یي دیته راوبللو چه (لا إلهَ إلا اللهُ) کلمه ووایي او د بتانو له عبادت او بندګی څخه ځان وساتي، نو هغوئ اکثرو یي لویي وکړه، او د توحید دعوت له قبلولو څخه یي انکار وکړ، لکه چه الله تعالی فرمايي:

﴿إِنَّهُمۡ كَانُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَهُمۡ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ يَسۡتَكۡبِرُونَ ٣٥ وَيَقُولُونَ أَئِنَّا لَتَارِكُوٓاْ ءَالِهَتِنَا لِشَاعِرٖ مَّجۡنُونِۭ ٣٦﴾ [الصافات: ٣٥-٣٦].

ترجمه: «بیشکه دی کافرو ته چه به وویل شو: چه نشته لایق دعبادت او بندګی مګر یواځی یو الله تعالی دې، نو دوي یي له منلو څخه انکار او لویي کوي، او وايي: آیا مونږ پریږدو خپل معبودان د یو داسی شاعر په خاطر چه پخپله لیونې هم دې».

نو الله تعالی ورته جواب ورکوي او فرمايي چه: ﴿بَلۡ جَآءَ بِٱلۡحَقِّ

وَصَدَّقَ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴿٣٧﴾ [الصافات: ٣٧]. يعنی: «بلکه هغه څه چه دی پيغمبر راوړي دي حق دي او د تيرو پخوانيو پيغمبرانو تصديق يي کړې دې».

نو د توحيد کلمه دحق کلمه ده، کومی ته چه له رسول الله ﷺ څخه پخوانيو پيغمبرانو هم بلنه ورکړی وه، او همدا زمونږ د خوږ پيغمبر محمد ﷺ بلنه هم ده، او د قريشو کافران هم پدي پوهيدل چه د توحيد کلمی معنی هم دا ده چه د الله تعالی پرته د بل هر چا عبادت او بندګي پريښودل شي.

او توحيد تر هغه پوری نه پلې کيږي چه ورسره له شرک څخه پوره اجتناب او ځان ساتنه نه وي شوي، او هم دا د «لا إله إلاّ الله» معنی ده.

عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ: «أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، فَمَنْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ فَقَدْ عَصَمَ مِنِّيْ مَالَهُ وَنَفْسَهُ إِلاَّ بِحَقِّهِ وَحِسَابُهُ عَلَى اللَّهِ». [متفق عليه].

له دوهم خليفه عمر فاروق رضي الله عنه څخه روايت دې هغه وايي: بيشکه رسول‌الله ﷺ فرمايلي دي: «ما ته په جهاد باندي امر شوې دې تر دی چه خلک د توحيد کلمه «لا إله إلاّ الله» ووايي، او هر چا چه دغه د «لا إله إلاّ الله» کلمه وويله نو د هغه مال او وينه محفوظه شوه، مګر هغه وخت به محفوظه نه وي کچيري يي بل حق ورباندی واوخت لکه: قصاص، او داسی نور، او نور حساب کتاب يي د الله تعالی سره دې». (دا حديث شريف په صحيح بخاری او صحيح مسلم شريف کښی دې).

او کله چه رسول الله ﷺ د وخت پاچاهانو ته دعوتي خطونه استول نو

هغوئ يي پكښى توحيد او د الله تعالى يووالي ته راوبلل، لكه عبد الله بن عباس رضي الله عنهما روايت كوي چه بيشكه رسول الله ﷺ د روم پاچا هرقل ته ليک واستولو، او پكښى يي وليكل:

((بسم الله الرحمن الرحيم، من مُحَمَّدٍ رسولِ اللهِ إلى هِرَقْلَ عَظيمِ الرُّومِ، سَلامٌ على مَن اتَّبَعَ الهُدَى أمَّا بعدُ: فإنِّي أدعوكَ بدِعايةِ الإسلامِ، أَسْلِمْ تَسْلَمْ، وأَسْلِمْ يُؤْتِكَ اللهُ أجْرَك مَرَّتين، فإن تَوَلَّيْتَ فإنَّ عليكَ إِثْمَ الأَرِيسِيِّينَ، و﴿قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا ٱللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِۦ شَيْـًٔا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ۚ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَقُولُوا۟ ٱشْهَدُوا۟ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ۝٦٤﴾ [آل‌عمران: ٦٤]))

[حديث متفق عليه]

ترجمه: «د ډير مهربانه او بخښونكي الله جل جلاله په نامه، دا ليک د محمد رسول الله لخوا د روميانو مشر هرقل ته: دحق په پيروانو دي سلام وي، أما بعد:

بيشكه زه تا ته د اسلام دعوت دركوم، ته مسلمان شه، نو ددنيوي او أخروي عذابونو او خجالتونو څخه به بچ شى، مسلمان شه؛ الله تعالى به درته دوه ځلى أجر دركړي، او كه دي له دي بلنى څخه مخ واړولو، نو پر تا باندي د ټولو أريسيينو ګناه بار ده». «او اي اهل كتابو ! راشئ د هغه كلمى منلو ته چه زمونږ او ستاسو تر منځ برابره او اتفاقي ده، او هغه دا چه مونږ او تاسو ټول به عبادت او بندګي نه كوو مګر د يو الله تعالى بندګي به كوو، او

له هغه سره به هیڅ شيې شريک او برخوال نه منو، او نه به پخپل منځ کښې يو بل سره په خدايي او الوهيت باندي نيسو پرته له الله تعالى څخه، نو که دي اهل کتابو ددي دعوت او بلنی څخه مخ واړولو نو ورته ووايه: چه تاسو ګواهان شئ چه مونږ خو مسلمانان او همدغه دالله تعالى حکم ته غاړه ايښودونکي يو». (دا حديث شريف په صحيح بخاري او صحيح مسلم شريف کښي دې).

او رسول الله ﷺ همدا ډول ليکونه د فارس پاچا کسرا، او دقبطيانو پاچا مقوقس، د حبشي پاچا، په عمان کښې جيفر او عياذ ابنى الجلندي ته، او په يمامه کښې هوذة بن علي ته، او په هجر کښې منذر بن ساوا ته، او ابن أبي شمر الغساني ته وليږل، کوم چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د خپلو خپلو ملکونو پاچاهان وو.

او په صحيح مسلم شريف کښې د انس بن مالک رضي الله عنه په حديث کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ د هغه وخت هر پاچا ته ليکونه واستول چه په دغه ليکونو کښې يي هغوئ د الله تعالى عبادت او بندګۍ ته راوبلل.

او د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دې چه بيشکه رسول الله ﷺ چه کله معاذ رضي الله عنه يمن ته استولو نو ورته يي وويل: «يقيناً ته داسې خلکو ته ورتلونکې يي چه هغوئ اهل کتاب دي، نو ته يي لمړې دي ته راوبله چه هغوئ الله تعالى په ربوبيت او الوهيت او عبادت کښې يو ومني».

نو توحيد او د الله تعالى يو منل په اسلام کښې د شامليدلو لمړنۍ دروازه ده، او له توحيد پرته هيڅ څوک مسلمانيدې نشي، او هر کله چه يو څوک

داسی یوه ګناه وکړي چه دا توحید له منځه وړي نو هغه کافر او مشرک کیږي، او د اسلام له مقدس دین څخه بهر شمارل کیږي.

وعن مُعاذِ بن جَبَلﷺ أن النبيَّﷺ قال له:

«يَا مُعَاذُ! تَدْرِي مَا حَقُّ اللَّهِ عَلَى الْعِبَادِ وَمَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ؟». قَالَ: قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: «فَإِنَّ حَقَّ اللَّهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوا اللَّهَ وَلاَ يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَحَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ لاَ يُعَذِّبَ مَنْ لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا...». [متفق عليه]

ترجمه: معاذ بن جبلﷺ وایي: «بیشکه رسول اللهﷺ ورته وویل: أي معاذه ! ته پوهیږي چه د الله تعالی حق پخپلو بندګانو باندي څه دي؟

معاذﷺ ورته وویل: الله تعالی او دهغه رسول پری ښه خبر دي.

نو رسول اللهﷺ ورته وویل: د الله تعالی حق پر خپلو بندګانو دا دي چه بندګان د الله تعالی عبادت او بندګي وکړي، او له هغه سره هیڅ شي شریک او برخوال نکړي.

بیا رسول اللهﷺ وویل: معاذه ! آیا ته پوهیږی چه که بندګان دالله تعالی دغه حق أدا کړي، نو ددغه بندګانو حق پر الله تعالی څه دي؟

هغه ورته بیا وویل: چه الله تعالی او دهغه رسولﷺ پری ښه پوهیږي.

نو رسول اللهﷺ وفرمایل: ددغه بندګانو چه کله دوئ د الله تعالی حق أدا کړي، نو ددوئ حق پر الله تعالی باندي دا دي چه دوئ ته عذاب ورنکړي».

(دا حدیث شریف په صحیح مسلم او صحیح بخاري شریف کښی دي).

نو کله چه یو بنده دا ګواهي وکړي چه «لا إله إلاّ الله» نو ده په حقیقت کښې داسې ګواهي وکړه چه د الله تعالی پرته ټول هغه څه چه عبادت او بندګي یي کیږي باطل شیان دي، او پخپل ځان یي هم په دي ګواهي وکړه چه دې به پخپله د الله تعالی پرته د بل هیچا عبادت او بندګي نکوي، او خپل عبادت او بندګي به خاص یو الله تعالی ته ځانګړی کوي، او همدا هغه اسلام دې چه الله تعالی یي له خپلو بندګانو څخه غواړي، لکه چه فرمایي:

﴿۞قُلۡ إِنِّي نُهِيتُ أَنۡ أَعۡبُدَ ٱلَّذِينَ تَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَمَّا جَآءَنِيَ ٱلۡبَيِّنَٰتُ مِن رَّبِّي وَأُمِرۡتُ أَنۡ أُسۡلِمَ لِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ٦٦﴾ [المؤمن: ٦٦].

ترجمه: «ووایه اي پیغمبره ! بیشکه زه د الله تعالی لخوا له دی نه منع شوې یم چه عبادت او بندګي وکړم دهغه چا چه تاسو یي عبادت او بندګي کوئ پرته له الله تعالی څخه، او هغه وخت منع شوې یم چه کله راغلي دي ماته واضحه دلایل زما د پروردګار لخوا، او ما ته امر او حکم ددی شوې دې چه زه غاړه کیدم پروردګار د عالمیانو ته».

همداراز الله تعالی فرمایي:

﴿وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ حُنَفَآءَ وَيُقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُواْ ٱلزَّكَوٰةَۚ وَذَٰلِكَ دِينُ ٱلۡقَيِّمَةِ ٥﴾ [البينة: ٥].

ترجمه: «دی خلکو ته امر نه دې شوې مګر خو امر شوې دوئ ته ددي خبری چه دوئ دی عبادت اوبندګي کوي یواځی د الله تعالی، په داسی حال کښې چه خالص کونکي وي دوئ الله تعالی ته د عبادت خپل، او ولاړ وي

په حق، او مایل نه وي باطل خوا ته، او بل ددی امر شوې دې دوئ ته چه پوره په خپل وخت به أدا کوي د ټولو حقوقو سره لمونځ، او ورکوي به زکات، او همدا مضبوط دین دې».

همداشان الله تعالی په بل ځاي کښی فرمايي:

﴿فَٱدۡعُواْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡكَٰفِرُونَ ١٤﴾ [المؤمن: ١٤].

ترجمه: «نو وبلی تاسو يوائی الله تعالی لره په داسی حال کښی چه خالص کونکي یاست یو الله تعالی لپاره د عبادت او بندګۍ خپلی، اګر که بد ګڼي دا کار کافران».

او الله ﷻ په بل ځاي کښی فرمايي:

﴿قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمۡ فِي شَكّٖ مِّن دِينِي فَلَآ أَعۡبُدُ ٱلَّذِينَ تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَٰكِنۡ أَعۡبُدُ ٱللَّهَ ٱلَّذِي يَتَوَفَّىٰكُمۡۖ وَأُمِرۡتُ أَنۡ أَكُونَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ١٠٤ وَأَنۡ أَقِمۡ وَجۡهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفٗا وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ١٠٥ وَلَا تَدۡعُ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَۖ فَإِن فَعَلۡتَ فَإِنَّكَ إِذٗا مِّنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ١٠٦﴾ [يونس: ١٠٤-١٠٦].

ترجمه: «ووایه اي پيغمبره ! اي خلکو که چیری یاستی تاسو په شک کښی زما له دین څخه، نو (زما خبره واوری): زه عبادت او بندګي نه کوم د هغه چا چه تاسو يي عبادت او بندګي کوئ پرته له الله تعالی نه، ولکن زه عبادت او بندګي کوم يوائی د الله عز وجلّ، هغه الله تعالی چه تاسو ته مرګ راولي، او ما ته امر شوې دې ددي چه زه له مؤمنانو څخه شم، او ما ته

امر شوې دې ددې چه سم کړه مخ خپل دین د الله تعالی ته په داسی حال کښی چه ولاړ یې پر حق او مایل نه یې باطل خوا ته، او مه کیږه ته له مشرکانو څخه، او مه رابله پرته له الله تعالی هغه څوک چه ګټه نشي رسولې تاته، او نه ضرر رسولې شي تاته، که دغه کار دی وکړ نو بیشکه ته به په دغه وخت کښی له ظالمانو څخه یې».

## د تیر درس خلاصه:

- د «لا إله إلاَّ الله» معنی دا ده چه: نشته معبود برحق مګر خو یو الله تعالی دې.
- توحید تر هغه پوری نشي پلی کیدې چه تر څو له شرک څخه ځان ونه ژغورل شي.
- زمونږ د پیدایش هدف: یواځی د یو الله تعالی بندګي کول چه شریک او برخَوال ورسره پکښی نه وي.
- هغه څوک چه د الله تعالی پرته د بل چا عبادت او بندګي وکړي هغه مشرك او کافر ګڼل کیږي.
- هر پیغمبر خپل قوم توحید ته رابللې او له شرک څخه یې د ځان ساتلو امر ورته کړې دې.
- د رسول اللهﷺ اصلي دعوت او بلنه هم توحید ته وه، او په شروع کښی یې خپل قوم توحید ته راوبللو، او د وخت پاچاهانو ته یې هم لیکونه واستول چه هغوئ ته یې پکښی د توحید دعوت ورکړې وو، او خپلو

ملګرو ته يي هم امر کړې وو چه دهغوئ ددعوت لمړۍ ټکې دی توحيد ته بلنه وي.

- د الله تعالی حق پر بندګانو هم همدا توحيد دې.
- هغه څوک چه په ربوبيت او عبادت او بندګئ کښی الله تعالی يوائی يو ونه مني، نو هغه مسلمان کيدې نشي، اګر که ځان ته مسلمان هم ووايي.

## دوهم درس: د «شهادة أن محمداً رسول اللّه» معنی

**«شهادة أن محمداً رسول الله»**: یعنی دا ګواهي کول چه محمدﷺ د الله تعالی رښتینې پیغمبر دې، نو ددی ګواهۍ مقتضی او غوښتنه دا ده چه یو مسلمان باید ایمان ولري چه الله تعالی خپل پیغمبر محمد بن عبد الله بن عبد المطلبﷺ ټولو پیریانو او انسانانو ته خپل پیغمبر او استاذې استولې دې، تر څو دوئ ته امر وکړي چه یواځی د یو الله تعالی عبادت او بندګي وکړي، او له هغه ټولو شیانو له عبادت او بندګۍ څخه ځان وژغوري چه له الله تعالی څخه پرته یي عبادت او بندګي کیږي، او هم دوئ ته داسلام د مقدس دین احکام بیان کړي.

همداراز دغه ګواهي ددي غوښتنه کوي چه محمدﷺ د الله تعالی بنده او پیغمبر دې، او هغه د عبادت او بندګۍ حق نلري، او هیڅکله روا نه ده چه مونږ د هغه په صفت او مدح کښی له حده تیر شو، او د ألوهیت په صفاتو یي وستایو، کوم چه د الله جل جلاله صفات دي.

عن عبدِ اللهِ بنِ عبَّاسٍ رضي الله عنهما أنه سَمِعَ عُمَر بنَ الخَطَّابِ رضي الله عنه يقولُ وهو على المِنْبرِ: سمعتُ النبيَّﷺ يقولُ: «لاَ تُطْرُونِي، كَمَا أَطْرَتْ النَّصَارَى ابْنَ مَرْيَمَ، فَإِنَّمَا أَنَا عَبْدُهُ، فَقُولُوا: عَبْدُ اللَّهِ، وَرَسُولُهُ». [رواه البخاري]

ترجمه: ابن عباس رضي الله عنهما له عمر رضي الله عنه څخه اوریدلي دي هغه وایي ما له رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چه هغه ویل: «زما په صفت او مدح کښی له حده مه تیریږئ لکه چه نصارا د عیسې عليه السلام په هکله د هغه په مدح او صفت کښی له حده تیر شوي وو(چه هغه ته یي الله، یا د الله تعالی ځوي، یا دریم له دریو څخه ویلو)، نو بیشکه زه د الله تعالی بنده یم، نو تاسو هم ووایی: چه «عَبْدُ اللَّهِ، وَرَسُولُهُ» یعنی د الله تعالی بنده او پیغمبر».

**او «شهادة أن محمداً رسول الله» له بنده څخه دری غټ شیان غواړي:**

۱/ د رسول الله ﷺ سره محبت کول، بلکه پر مونږ فرض دي چه د رسول الله ﷺ محبت د خپل ځان اهل او اولادونو له محبت نه مخکی او زیات وګڼو؛ ځکه أنس رضي الله عنه له رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چه هغه ﷺ فرمایلي دي:

«لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ، حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ». [متفق علیه].

ترجمه: «یو له تاسو څخه مؤمن او مسلمان کیدې نشي تر څو چه هغه ته زه له اولادونو پلار او ټولو خلکو څخه ډیر محبوب نشم»، یعنی د رسول‌الله ﷺ محبت دی له ټولو څخه مخکی او زیات وي.

۲/ ټول هغه غیبي او غیر غیبی خبری چه رسول الله ﷺ کړي وي هغه باید رښتیا وګڼي، او ایمان پری ولري، نو ټول هغه څه چه له رسول الله ﷺ څخه په صحیح سند ثابت وي هغه حق او رښتیا دي.

۳/ د رسول الله ﷺ پیروي کول، یعنی دهغه ټول امرونه پر ځان منل او

پلي کول، او ټول هغه څه چه رسول اللهﷺ ورڅخه منع فرمایلی ده ځان ورڅخه وژغوري.

**او «شهادة أن محمداً رسول الله»** په اسلامي دین کښې یو لوي اصل او بنسټ دې، بلکه یو بنده په اسلام کښې تر هغه پورې داخلیدې نشي چه تر څو دغه د «محمد رسول الله» ګواهي ونکړي چه: محمدﷺ د الله تعالی بنده او رښتینې پیغمبر دې، نو کله چه یو بنده دداسې یوی ګناه مرتکب شي چه ددغه ګواهی سره مناقض وي او دغه ګواهي ماتوي نو دغه بنده بیا مسلمان کیدې نشي، بلکه هغه کافر او داسلام له مقدس دین څخه مرتد شمارل کیږي.

## ځینی هغه شیان چه دغه ګواهي ماتوي:

۱/ د رسول اللهﷺ سره بغض او کینه کول، او یا ورته ښکنځل کول، او یا هم ورپورې مسخرې ټوکې او ملنډې کول، او یا په هغه احکامو پورې چه رسول اللهﷺ راوړي وي مسخرې ټوکې او ملنډې کول، نو که څوک ددغې کارونو مرتکب شي هغه په رسول اللهﷺ باندي کافر بلل کیږي؛ لکه چه الله تعالی فرمایي:

﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُواْ فِيٓ أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسْلِيمًا ۝٦٥﴾ [النساء: ٦٥].

ترجمه: «زما دی ستا په رب باندی قسم وي چه تر هغه پوری دا د ایمان

دعوه کونکي مؤمنان او مسلمانان کیدې نشي تر هغه پوری چه دوي په هغه مسایلو کښې چه ددوي تر منځ پیښیږي تا حَکَم او فیصله کن ومني، او بیا ستا له فیصلی وروسته - اګر که ددوي په ګټه یا تاوان وي- پخپلو زړونو کښې ستا په فیصلی تنګي محسوس نکړي، بلکه خپل ځان په پوره ډول ستا فیصلو ته تسلیم کړي، او ستا فیصلو ته غاړه کیږدي».

۲/ رسول اللهﷺ دروغجن ګڼل، او یا هم د هغه په رښتینولی کښې شک کول؛ ځکه دروغجن ګڼونکي او شک کونکي دواړو په حقیقت کښې یو شان د هغهﷺ رښتینولي نه ده منلی، او هغه څوک چه رسول اللهﷺ رښتینې ونه مني او رښتینې یي ونه ګڼي هغه مسلمان او مؤمن نشي کیدې.

۳/ د رسول اللهﷺ له پیروۍ او اطاعت څخه سر غړونه؛ په دی بهانه چه یا خو وربانديي دغه پیروي فرض نه ده، او یا عامه سرغړونه کوي، چه د رسول الله د اوامرو او نواهیو سره بي پرواهي کوي.

هو، هغه څوک چه په الله تعالی او دهغه په رسولﷺ باندي ایمان لري، او ځینی هغه ګناهونه تری کیږي چه د اسلام او ایمان مناقض او ماتونکي نه وي، نو داسی بنده ګناهګار مسلمان ګڼل کیږي، او ددغی ګناه په سبب نه کافر کیږي، بلکه ددغسی بنده لپاره مونږ د الله تعالی د عفوی او بخښنی امید کوو، او هم وربانديي ددغی ګناه په سبب له دردناک عذاب څخه ویریږو.

نو هر څوک چه ددغه نواقضو او د «شهادة أن محمداً رسول الله» د ماتونکو ګناهونو مرتکب شي داسی بنده په حقیقت کښې په رسول اللهﷺ

باندي ایمان نلري، اګر که هغه په ژبه دغه ګواهي کوي، نو دده حال د هغه منافقینو په شان دې چه الله تعالی د هغوئ په هکله فرمايي:

﴿إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُنَٰفِقُونَ قَالُواْ نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُۥ وَٱللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَكَٰذِبُونَ ١﴾ [المنافقون: ١].

ترجمه: «کله چه راشي تاته –اي پيغمبره– منافقان، نو وايي دوئ: مونږ ګواهي کوو چه بيشکه ته خامخا د الله تعالی رسول او پيغمبر يې، او الله تعالی ښه پوهيږي چه بيشکه ته خامخا د الله تعالی رسول او پيغمبر يې، خو –سره له دي هم– الله ګواهي کوي چه بيشکه دا منافقان خامخا دروغجن دي په دغه ګواهۍ خپله کښي».

نو دغه ګواهي د يو بنده څخه تر هغه پوری نه صحيح کيږي او تری نه منل کيږي چه تر څو يي ددغه ګواهۍ غوښتنی پرځاي کړی نه وي، چه هغه محبت، تصديق او اطاعت او پيروي ده.

نو دا ګواهي يواځی يو څو الفاظ نه دي چه يو څوک يي ووايي او مسؤوليت يي پوره شي، بلکه دا د ژوند پوره تګلاره ده، او په همدي باندي دده دعمل دارومدار موقوف دې، او ددي ګواهۍ په تحقيق او پوره عملي کولو باندي د بنده کامیابي او نيکبختي لاس ته ورځي.

او الله تعالی د هيڅ يو بنده هيڅ يو عمل تر هغه پوری نه قبلوي تر څو چه دوه شرطه پکښی پوره نه وي، چه هغه يو يي اخلاص، يعنی چه دغه عمل خاص د الله تعالی د رضامندۍ لپاره وي، او بل شرط دا چه هغه د رسول الله ﷺ

د سنتو او طریقی سره برابر وي.

نو اخلاص د «لا إله إلاَّ الله» د ګواهۍ غوښتنه ده، او متابعت او د رسول الله ﷺ پیروي د «شهادة أن محمداً رسول الله» د ګواهۍ غوښتنه ده.

او هیڅ بنده تر هغه پورې د هدایت پیروان کیدې نشي ترڅو چه یي عمل خاص د الله تعالی د رضامندۍ لپاره نه وي، او هم پکښې د رسول الله ﷺ د سنتو پیروي نه وي.

او هر عمل چه د رسول الله ﷺ د سنتو مطابق نه وي، نو هغه عمل مردود او باطل دي؛ ځکه چه رسول الله ﷺ فرمايي: «مَنْ عَمِلَ عَمَلًا لَيْسَ عَلَيْهِ أَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ». [رواه مُسْلمٌ من حديثِ عائشةَ رضي الله عنها].

ترجمه: «هر چا چه داسی یو عمل وکړ چه په هغه باندی زمونږ امر نه وي، نو هغه مردود او باطل دي».

وفي صحيحِ مُسلمٍ أيضًا من حديثِ جابرِ بنِ عبدِ اللهِ رضي الله عنهما أن النبيَّ ﷺ كان يقولُ في خُطْبَتِهِ: «أما بعدُ، فإنَّ خيرَ الحديثِ كتابُ اللهِ، وخيرَ الهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ، وشرَّ الأمورِ مُحْدثاتُها، وكلَّ بدعةٍ ضَلالةٌ».

او په صحیح مسلم کښې د جابر بن عبد الله رضي الله عنهما په روایت کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ به د خطبې په سر کښې ویل: «أما بعد: بیشکه بهتره خبرې د الله تعالی کتاب دې، او بهتر هدایت د محمد ﷺ رواړې هدایت دې، او بدترین له کارونو څخه بدعات او په دین کښې نوي کارونه دي، او په دین کښې هر نوې کار او بدعت ګمراهي او له دین څخه بي لاري ده».

او مبتدع د رسول اللهﷺ څخه سرغړوونکې او دهغه د راوړې هدايت څخه بې لارى دې، او له دې بدعت له کبله ګمراه دې.

او بدعت په دوه ډوله دې:

لمړې: هغه بدعات چه د هغی په کولو سره بنده کافر کيږي.

دوهم: هغه بدعات جه دهغی په کولو سره بنده فاسق کيږي.

لمړي ډول بدعات هغه دي چه په هغی کښی د اسلام او ايمان له نواقضو او ماتوونکو څخه دکوم ناقض ارتکاب وي، لکه د غير الله عبادت او بندګي، يا د الله او د رسول اللهﷺ تکذيب او دروغجن ګڼل، او يا داسی نور نواقض او ايمان ماتوونکي شيان، نو داسی بنده کافر او له اسلام څخه مرتد شمارل کيږي، لکه هغه خلك چه وايي: قرآنکريم ناقص دې، يا پکښی تحريف شوې دې، او يا هغه څوك چه وايي ددوي مشران په غيبو پوهيږي او د غيبو علم ورسره دې.

او دوهم ډول بدعات هغه دي چه په هغی کښی د اسلام او ايمان ماتوونکي ګناهونه نه وي، لکه د ځينو عبادتونو په ځينو ځايونو يا وختونو پورى خاص کول، يا د ځينو ځايونو او وختونو په ځينو عبادتونو پورى خاص کول، چه دغه تخصيص باندي کوم شرعي دليل نه وي، لکه(مَوْلِدْ) يعنی د رسول اللهﷺ د پيدايښت په مناسبت جشنونه، اخترونه او ميلی کول.

ځکه د رسول اللهﷺ هدايت او لارښوونه تر ټولو ښه هدايت او لارښوونه ده، او د بنده کمال او کاميابي په هغه اندازه ده څومره چه د رسول اللهﷺ د

لارښوونی پیروان وي، نو هر څومره چه ډیر ددغه لارښوونی پیروان وي، هومره یي ثواب لوي او په دنیا او آخرت کښی به یي حالت ښه وي، او هغومره به له شرونو، ګناهونو او د رسول الله د لارښوونی د مخالفت او د هغی دسزاګانو څخه و دسلامتیا خوا ته ډیر نژدی وي.

ځکه رسول الله ﷺ هیڅ یو بنده ته د هغه په دین او دنیا کښی یو امر نه کوي مګر په هغه څه چه ددغه بنده پکښی ددنیا او آخرت خیر وي، او د هیڅ کوم شي څخه یي نه منع کوي مګر په هغه کښی دده لپاره فساد او ضرر وي.

خو سره له دی هم له جنت څخه تکلیفونه او مشکلات چاپیر دي، او اور څخه شهوات چاپیر دي، نو هغه څوک چه د رسول الله ﷺ په رښتینولی باندي باوري وي، هغه به د رسول الله ﷺ د لارښوونی پیروي کوي، او د حرامو شهوتونو څخه به ځان ژغوري، اګر که دده نفس یي غواړي، او همدارنګه که دده د پیروۍ په لار کښی ورته کوم تکلیفونه او مشقّتونه رسیږي نو په هغی صبر کوي؛ ځکه ده ته د ښو او بدو انجامونه وریاد وي، او په همدغه طریقه دې له دردناک عذاب څخه بچ کیږي، او په لویو ثوابونو باندي کامیابیږي.

او هغه څوک چه د رسول الله ﷺ د لارښوونی مخالفت کوي، او هغه حرام کارونه کوي چه دده نفس یي غواړي، او د خپل نفس په خوشحالی پسی ګرزي، نو دغه بنده له دی نه په امن کښی نه دې چه ده ته دده په دین

او دنیا کښې ده‌ده د ګناه په سبب سزا ورکړل شي؛ لکه چه الله تعالی فرمايي:

﴿فَلۡيَحۡذَرِ ٱلَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنۡ أَمۡرِهِۦٓ أَن تُصِيبَهُمۡ فِتۡنَةٌ أَوۡ يُصِيبَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝٦٣﴾ [النور: ٦٣].

ترجمه: «وه دي ويريږي هغه کسان چه د رسول الله ﷺ له حکم او امر څخه سرغړونه کوي، (ويره دي وکړي) له دي څخه چه ورته به ورسيږي فتنه، او يا به ورته ورسيږي دردناک عذاب».

نو د ګناهونو کول کله کله د بنده په دين کښې دداسې فتنې سبب شي چه بنده يي مقابله نشي کولاي، نو ګمراه بي لاری او په آخر کښې هلاک شي، او کله کله ددغه ګناه په سبب ورته په دنيا کښې يا په قبر کښې او يا هم په آخرت کښې دردناک عذاب ورسيږي.

او هغه څوک چه د رسول الله ﷺ د لارښوونې پيروان وي، نو هغه د الله تعالی لخوا په امن او اطمينان کښې وي، نه ويريږي، او نه خفه کيږي، او نه له سمې لارې څخه بې لارې کيږي، او نه بدبخت کيږي؛ ځکه هغه له شروع نه د ويرې، غمونو، او ددنيا او آخرت له بدبختۍ څخه د سلامتيا په لاره تللې دي؛ ځکه الله تعالی فرمايي:

﴿يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ كَثِيرٗا مِّمَّا كُنتُمۡ تُخۡفُونَ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ وَيَعۡفُواْ عَن كَثِيرٖۚ قَدۡ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٞ وَكِتَٰبٞ مُّبِينٞ ۝١٥ يَهۡدِي بِهِ ٱللَّهُ مَنِ ٱتَّبَعَ رِضۡوَٰنَهُۥ سُبُلَ ٱلسَّلَٰمِ وَيُخۡرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ بِإِذۡنِهِۦ وَيَهۡدِيهِمۡ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ۝١٦﴾ [المائدة:١٥-١٦].

«اي اهل کتابو ! بیشکه راغلې دې تاسو ته زمونږ پیغمبر، چه بیانوي تاسو ته ډیر هغه څه چه تاسو به پټول د کتاب له مسائلو څخه، او الله له ډیرو سرغړونو ستاسو څخه عفو هم کوي، بیشکه راغلي دي تاسو ته د الله تعالی لخوا رڼا او کتاب واضح، چه لارښوونه کوي پدي سره الله هغه چا ته چه پیروي کوي د رضامندئ د الله تعالی-، (لارښوونه کوي)- په طرف د لارو د سلامتیا، او وباسي دوي لره له تیارو څخه رڼا ته په حکم خپل، او لارښوونه کوي دوي ته په طرف د سمی لاری».

او شک نشته چه الله تعالی په خپل پیغمبرﷺ باندي د رسالت رسَونه او ادا کول فرض کړي دي، نو هغهﷺ هم لکه چه ورته امر شوې وو همغه شان یې دالله دین خلکو ته رسولې دې؛ لکه چه الله تعالی فرمایي:

﴿۞يَـٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغۡ مَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ مِن رَّبِّكَ﴾ [المائدة: ٦٧].

ترجمه: «أي پیغمبره ! ورسوه هغه دین خلکو ته چه د الله جل جلاله لخوا درته نازل شوې دې».

او همدارنګه پرمونږ باندي الله تعالی د رسول اللهﷺ اطاعت او پیروي فرض کړی ده، لکه چه فرمایي:

﴿قُلۡ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَۖ فَإِن تَوَلَّوۡاْ فَإِنَّمَا عَلَيۡهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيۡكُم مَّا حُمِّلۡتُمۡۖ وَإِن تُطِيعُوهُ تَهۡتَدُواْۚ وَمَا عَلَى ٱلرَّسُولِ إِلَّا ٱلۡبَلَٰغُ ٱلۡمُبِينُ ٥٤﴾ [النور: ٥٤].

ترجمه: «ورتهووایه اي پیغمبره ! اطاعت او پیروي وکړئ د احکامو د الله تعالی او هم پیروي وکړئ د اوامرو د رسول اللهﷺ، نو که دوئ ددي امر

له منلو څخه مخ وګرزولو نو (هیڅ پروا مه کوی؛ ځکه)په پیغمبر باندي دې مسؤولیت او بوج د هغه کار چه په هغه باندي فرض شوې دې، او په تاسو باندي بوج او مسؤولیت د هغه کار دې چه پر تاسو فرض شوې دې، خو که تاسو پیروي وکړئ ددغه پیغمبر نو تاسو به په سمه لار شئ، او سمه لار به ومومئ، او نشته په پیغمبر باندي مګرتبلیغ او رسوَل ددین دي په واضح ډول».

او په پیغمبرﷺ باندي د دین د تبلیغ مسؤولیت اچول شوې وو، نو همغه شان چه الله تعالی ورڅخه غوښتلي وو ورسولو او بیان یي کړ، لکه چه رسول اللهﷺ له خلکو څخه د حجة الوداع په ورځ په هغه لویه غونډه کښې وپوښتل: «أَلاَ هَلْ بَلَّغْتُ»؟ یعنی: «خبردار ! ! آیا ما خپل مسؤولیت او ددین تبلیغ ادا کړ؟» نو خلکو ورته وویل چه: هو، نو بیا رسول اللهﷺ وفرمایل: «اللّٰهُمَّ اشْهَدْ» یعنی: «اي الله ته پری ګواه شه».

نو مونږ هم شاهدي او ګواهي کوو چه رسول اللهﷺ خپل مسؤولیت ادا کړې دې، او دا دین یي خلکو ته پوره رسولې دې، او هغه امانت چه دده په اوږو اچول شوې وو ښه پوره یي ادا کړې دې، او د خپل امت لپاره یي پوره خیرخواهي کړی ده، او د الله ددین په رسولو کښې یي پوره او حقیقي جهاد کړې دې، تر دي چه مرګك ورته راغې، او لدی فاني دنیا څخه رخصت شو.

او په مونږ باندی د پیغمبرﷺ د اتباع او پیروئ امانت فرض شوې دې، چه په ظاهر او باطن، په ښکاره او پټه به د هغهﷺ پیروي کوو، نو که چا دغه

امانت پوره ادا کړ هغه کامیاب دې، او له ملامتیا او عذابونو خلاص دې، او د لوئ ثواب لاس ته راوړونکې شو.

خو هغه څوك چه ددغه امانت په ادا کښی خیانت وکړي نو هغه په لوئ تاوان سره تاواني شو، لکه چه الله جل جلاله فرمایي:

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَخُونُواْ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ وَتَخُونُوٓاْ أَمَـٰنَـٰتِكُمْ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٧﴾﴾ [الأنفال: ٢٧].

ترجمه: «أي مؤمنانو تاسو خیانت مه کوئ د الله تعالی سره او د هغه د رسولﷺ سره، او خیانت مه کوئ په خپلو امانتونو کښی په داسی حال کښی چه تاسو پری پوهیږئ».

## دریم درس: د الله تعالی او د رسول اللهﷺ پیروي فرض ده

د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ اطاعت او پیروي کول په اسلام کښې یو مهم اصل او بنسټ دې، او یو بنده تر هغه مسلمان کیدې نشي تر څو چه هغه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ اوامرو ته غاړه ایښودونکې نشي، او دا عقیده ولري چه د الله تعالی او دهغه د رسولﷺ اطاعت او پیروي کول فرض دي، نو هغه خلک چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ اطاعت او پیروي کوي داسې کامیابي وریه برخه کیږي چه د الله تعالی رضامندي، رحمت او لوئ فضل په لاس ورځي، او له دردناک عذاب څخه خلاصې مومي، او هغه څوک چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ له امر او احکامو څخه سر غړونه کوي او ورڅخه مخ اړوي نو داسې خلک په ښکاره تاوان باندي تاواني کیږي، او ځان د الله تعالی قهر او عذاب ته وړاندی کوي.

او هغه څوک چه دا عقیده لري او ګومان کوي چه پر ده د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ اطاعت او پیروي فرض نه ده، نو داسې بنده مسلمان کیدې نشي؛ ځکه الله تعالی فرمایي: ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ ٱلْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ۗ وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًا مُّبِينًا ۝٣٦﴾ [الأحزاب: ٣٦].

ترجمه: «هیڅکله روا نه دي هیڅ مؤمن سړي او نه مؤمنی ښځی ته دا کار - چه کله په یو کار کښی الله تعالی او د هغه رسولﷺ یوه فیصله وکړي -نو دغه مؤمن سړي او مؤمنی ښځی ته بیا په دغه کار ددوئ کښي د بل اختیار لټونه روا نه ده، او هغه څوک چه سرغړونه وکړي د الله تعالی او دهغه د رسولﷺ څخه، نو بیشکه دې بي لاری شو په بی لاریتوب ښکاره سره له حق نه».

همداراز الله تعالی د خپل کتاب په بل ځاي کښی فرمايي:

﴿۞يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَلَا تُبۡطِلُوٓاْ أَعۡمَٰلَكُمۡ ٣٣﴾ [محمد: ۳۳].

ترجمه: «اي مؤمنانو تاسو پیروي وکړئ د الله تعالی او پیروي وکړئ د هغه د رسولﷺ، او خپل عملونه- د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ په نافرمانی او سرغړونه- مه باطلوئ».

او همداراز الله تعالی د خپل کتاب په بل ځاي کښی بیا فرمايي:

﴿وَأَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُونَ ١٣٢﴾ [آل عمران: ۱۳۲].

ترجمه: «او پیروي وکړئ - اي مومنانو - د الله تعالی او دهغه د رسولﷺ؛ ددي لپاره چه پر تاسو باندي د الله تعالی رحم وکړې شي».

همداراز الله تعالی په بل ځاي کښی فرمايي:

﴿وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ يُدۡخِلۡهُ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ وَذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ١٣ وَمَن يَعۡصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَتَعَدَّ

حُدُودَهُۥ يُدۡخِلۡهُ نَارًا خَٰلِدٗا فِيهَا وَلَهُۥ عَذَابٞ مُّهِينٞ ۝١٤﴾ [النساء: ۱۳-۱٤].

ترجمه: «او هغه څوك چه پيروي او اطاعت كړي د الله تعالى او د هغه د رسولﷺ نو الله تعالى به يي داسى جنتونو ته ننباسي چه د هغى د ماښو لاندي ويالى بهيږي، په داسى حال كښى چه هميشه به وي دوئ به دغه جنتونو كښى او همدا لويه كاميابي ده، او -ددي په عكس- هغه څوك چه مخالفت او سرغړونه وكړي د الله تعالى او د هغه د رسولﷺ، او د الله تعالى له حدودو څخه تير شي، نو الله تعالى به يي اور ته ننباسي، په داسى حال كښى چه هميشه به وي دوئ په دغه اور كښى، او ددي سره سره به ددوئ لپاره سپكونكې عذاب هم وي».

همدغه شان الله تعالى په بل ځاي كښى فرمايي:

﴿وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ فَأُوْلَٰٓئِكَ مَعَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَۚ وَحَسُنَ أُوْلَٰٓئِكَ رَفِيقٗا ۝٦٩ ذَٰلِكَ ٱلۡفَضۡلُ مِنَ ٱللَّهِۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ عَلِيمٗا ۝٧٠﴾ [النساء: ٦٩-٧٠].

ترجمه: «او هغه څوك چه پيروي او اطاعت وكړي د الله تعالى او د هغه د رسولﷺ نو دوئ به د الله تعالى د هغه نيكانو بندګانو سره يوځاي وي چه الله تعالى ورباندي خپل نعمت كړې دې، چه هغوئ پيغمبران، صديقين، شهيدان او نور نيكان بندګان دي، او همدوئ ډير ښه دي په ملګرتوب كښى، او دا كار مهرباني ده د الله تعالى لخوا، او الله تعالى كافي دې په علم او پيژندلو د خلكو او د هغوئ د اعمالو او رفيقانو كښى».

همدارنګه الله تعالی په بل ځای کښې فرمايي:

﴿وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدۡ فَازَ فَوۡزًا عَظِيمًا ٧١﴾ [الأحزاب: ٧١].

ترجمه: «او هغه څوک چه پیروي وکړي د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ نو بیشکه دې کامیاب شو په لوئ کامیابۍ سره».

همداډول الله تعالی په بل ځای کښې فرمايي: ﴿وَمَن يَعۡصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَإِنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ٢٣﴾ [الجن: ٢٣].

ترجمه: «او هغه څوک چه مخالفت و سرغړونه وکړي د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ نو یقیناً دده لپاره د جهنم اور دې په داسې حال کښې چه دوئ به په دغه اور کښې همیشه وي د تل لپاره».

او په بل ځای کښې بیا فرمايي:

﴿مَّن يُطِعِ ٱلرَّسُولَ فَقَدۡ أَطَاعَ ٱللَّهَ﴾ [النساء: ٨٠].

ترجمه: «او هغه څوک چه د رسول اللهﷺ اطاعت او پیروي کوي، نو هغه په دغه پیروۍ سره د الله تعالی پیروي کوي».

او د رسول اللهﷺ د پیروۍ په اهمیت کښې الله تعالی په بل ځای کښې فرمايي:

﴿وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمۡ عَنۡهُ فَٱنتَهُواْ﴾ [الحشر: ٧].

ترجمه: «او هغه څه چه تاسو ته یي رسول اللهﷺ درکوي او تاسو ته پرې امر کوي نو هغه واخلئ او عمل پرې وکړئ، او هغه څه چه رسول اللهﷺ تاسو ورڅخه منع کوي نو تاسو ورڅخه منع شئ».

نو دا ټول آیاتونه په دی ښکاره دلالت کوي چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ اطاعت او پیروي کول فرض دي، او هغه څوک چه د الله او د هغه د رسولﷺ اطاعت او پیروي کوي الله ورته د جنتونو او نعمتونو وعده ورکوي، او هغه څو ک چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ څخه مخالفت او سرغړونه کوي نو الله تعالی یې په دردناک عذاب سره ویروي.

او اطاعت او پیروي داسی کیږي چه اوامر ومنل شي او عمل پری وشي، او هغه شیان چه ورڅخه منع راغلی وي بنده ورڅه ځان وساتي، او همدا د دین اصلي حقیقت دي، او هغه دا چه د الله تعالی په اوامرو عمل وشي، او هغه څه چه ورڅخه یې منع فرمایلی ده ورڅخه ځان وژغورل شي.

او الله جل جلاله دا دین مونږ ته آسان کړې دې، او مونږ یې په داسی څه مکلف کړي نه یو چه زمونږ له توان څخه بهر وي، بلکه په هغه څه مو مکلف کوي چه زمونږ په توان کښی وي، لکه چه الله جل جلاله په خپل کتاب کښی فرمایي:

﴿فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ مَا ٱسۡتَطَعۡتُمۡ﴾ [التغابن: ١٦].

ترجمه: «د الله تعالی څخه هومره ویریږئ چه ستاسو په طاقت او توان کښی وي».

همداشان الله تعالی فرمایي:

﴿لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفۡسًا إِلَّا وُسۡعَهَا﴾ [البقرة: ٢٨٦].

ترجمه: «نه مکلف کوي الله تعالی هیڅوک مګر په اندازه د توان د

هغی».

او په بل ځاي کښې فرمايي:

﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيۡكُمۡ فِي ٱلدِّينِ مِنۡ حَرَجٖ﴾ [الحج: ۷۸].

ترجمه: «او نه ده ګرزولې الله تعالی په تاسو باندی په دین کښې کومه سختي».

او د رسول اللهﷺ څخه ابوهریرهؓ روایت کوي چه بیشکه رسول اللهﷺ فرمایلي دي: «إِنَّ الدِّينَ يُسْرٌ وَلَنْ يُشَادَّ الدِّينَ أَحَدٌ إِلاَّ غَلَبَهُ». [رواه البخاري].

ترجمه: «بیشکه دا دین آسان دې، او هیچا له دین سره زور نه دې ویلې مګر دین ورباندی غالب شوې دې».

او د ابو هریرهؓ په بل روایت کښې له رسول اللهﷺ څخه راغلي دي چه رسول اللهﷺ فرمایلي دي: «إِذَا نَهَيْتُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَاجْتَنِبُوهُ، وَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِأَمْرٍ فَأْتُوا مِنْهُ مَا اسْتَطَعْتُمْ». [متفق علیه].

ترجمه: «هغه څه چه زه تاسو ورڅخه منع کوم نو تاسو ورڅخه ځان وساتی، او هغه څه چه تاسو ته پری امر کوم نو څومره چه مو توان وي عمل پری وکړئ».

## او د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ اوامر دری درجی لري:

**لومړئ درجه:** او هغه دا چه ددغه اوامرو څخه په اسلام باندي پاتي کیدل او استمرار لازمیږي، چه دالله تعالی په توحید باندی د امر کولو او په

طاغوت باندي د کفر او له هغی څخه انکار کولو، او د اسلام له نواقضو او ماتونکو څخه ځان ساتلو کښې د الله تعالی د اوامرو او احکامو اطاعت او پیروي وکړل شي.

نو هغه څوک چه ددي درجی اوامرو څخه مخالفت او سرغړونه کوي، او د الله تعالی سره شرک کوي، او یا هم د اسلام له نواقضو او ماتوونکو څخه د کوم ناقض او ماتوونکي مرتکب شي، لکه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ دروغجن ګڼل، او یا ددین په کومه مسأله پسی ټوقی مسخری کول، او یا داسی نورو نواقضو مرتکب شي نو داسی شخص کافر دې او د اسلام څخه وتلې دې.

**دوهمه درجه:** هغه اوامر چه په هغی باندی بنده له عذاب څخه بچ کیږي، لکه د واجباتو او فرائضو ادا کول، او له محرماتو څخه ځان ساتل، نو هغه څوک چه دا ډول اوامر عملي کوي نو دې د الله په حکم او امر باندی له عذاب څخه بچ کیږي، او ددغه اطاعت او پیروۍ له کبله له ده سره د الله تعالی لخوا د لوئ ثواب وعده ده، او دا درجه د متقینو بندګانو درجه ده.

**دریمه درجه:** د واجباتو او مستحباتو ادا کولو، او له محرماتو او مکروهاتو څخه د ځان ساتلو اوامر:

او همدا د بندګانو د کمال درجه ده، او ددي ډول اوامرو پوره کونکي د احسان دمرتبی خاوندان دي، له چا سره چه د اوچتو درجو وعده شوی ده، الله تعالی دی په خپل فضل او مهربانی څمونږ هم دغه درجه په برخه کړي.

او الله تعالی مونږ لپاره دین  پوره کړې دې، او په مونږ یي خپل نعمت پوره کړې دې، چه د اسلام دین یي راپوره کړې دې، لکه چه الله تعالی فرمايي:

﴿ٱلۡيَوۡمَ أَكۡمَلۡتُ لَكُمۡ دِينَكُمۡ وَأَتۡمَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ نِعۡمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلۡإِسۡلَٰمَ دِينٗاۚ﴾ [المائدة: ٣].

ترجمه: «نن ورځ ما تاسو ته ستاسو دین بشپړ کړ، او په تاسو می خپل نعمت تمام او پوره کړ، او ستاسو لپاره می د اسلام مقدّس دین ددین په توګه غوره کړ».

نو د اسلام دین کامل دین دې، او د شریعت احکام یي زمونږ د ژوند ټولو اړخونو ته شامل دي، ځکه خو په دغه شریعت کښی نقص او کمې نشته، او نه پکښی کوم اختلاف او تناقض شته، بلکه دا پوره آسانه او فطرتي دین دې چه د هر وخت او هر ځاي لپاره صالح او پکښی چلیږي، او د بندګانو ټولو احوالو ته شامل دې.

او هغه څوک چه د الله تعالی او  دهغه د رسولﷺ اطاعت او پیروي کوي، نو دې په حقیقت کښی دژوند په هر اړخ کښی سمی خوا ته لار موندونکې دې، لکه چه الله تعالی په خپل کتاب کښی فرمايي:

﴿إِنَّ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانَ يَهۡدِي لِلَّتِي هِيَ أَقۡوَمُ﴾ [الإسراء: ٩].

«بیشکه دا قرآنکریم هغی لاری ته ښودنه کوي چه ډیره سمه ده».

نو هیڅ بنده د الله تعالی په مخالفت او د هغه له کتاب څخه په سرغړونه

کښې د خپل ځان لپاره کومه ښه پایله لاس ته نشي راوړې.

همداشان رسول اللهﷺ فرمایلي دي:

«أَحْسَنَ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍﷺ» [روه النسائي].

ترجمه: «او بیشکه ډیره ښایسته او بهترین هدایت او لارښوونه د محمدﷺ هدایت او لارښوونه ده».

نو د رسول اللهﷺ له لارښوونی څخه بله ښایسته او ښه لارښوونه نشته، او هیڅ امکان نشته چه یو بنده دي د رسول اللهﷺ په مخالفت او د هغه له لارښوونی څخه په سرغړونه کومی ښی درجی ته ورسیږي، او یا دی ورته کوم خیر په لاس ورشي، بلکه د بنده کمال، خلاصې، نیکبختي او د هدایت لوړی درجی ته رسیدل د هغه د رسول اللهﷺ د اتباع او د هغه د پیروۍ په اندازه باندی ده، الله جل جلاله فرمایي: ﴿قُلْ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ ۖ فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِ ٱلنَّبِىِّ ٱلْأُمِّىِّ ٱلَّذِى يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَكَلِمَـٰتِهِۦ وَٱتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥٨﴾﴾ [الأعراف: ۱۵۸].

ترجمه: «اي خلکو ! یقیناً زه تاسو ټولو ته د الله لخوا پیغمبر او استاذې یم ، هغه الله تعالی چه د هغه په اختیار او ملکیت کښې د اسمانونو او ځمکی پاچاهي ده، نو نشته لایق د عبادت او بندګۍ مګر همغه یو الله تعالی دې چه

ژوندي کول او مړه کول کوي، نو تاسو ایمان راوړئ په الله تعالی او د هغه په رسول باندی، داسی پیغمبر چه په اصل کښی امي او ناخوانه دې(خو وحي ورته د الله تعالی لخوا راغلی ده)، او داسی پیغمبر چه هغه پخپله هم په الله تعالی او د هغه په کلماتو ایمان لري، ددي لپاره چه تاسو په سمه لار شی».

نو هغه څوک چه د رسول اللهﷺ اتباع او پیروي کوي همدې په سمه لار دې، او هرڅوک چه له ده څخه سرغړونه کوي نو همدې ګمراه او بی لاری دې، الله جل جلاله فرمایي:

﴿وَمَن يُشَاقِقِ ٱلرَّسُولَ مِنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ ٱلۡهُدَىٰ وَيَتَّبِعۡ غَيۡرَ سَبِيلِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصۡلِهِۦ جَهَنَّمَۖ وَسَآءَتۡ مَصِيرًا ١١٥﴾ [النساء: ۱۱۵].

ترجمه: «او هغه څوک چه مخالفت او سرغړونه وکړي له پیغمبرﷺ څخه وروسته له هغه چه ده ته ښکاره شو هدایت او لارښوونه د رسول اللهﷺ، او پیروي وکړي د مسلمانانو له لاری نه غیر د بلی لاری، نو مونږ به یي هغه خواته وګرزوو چه دې ورته ګرزیدلې دې، او جهنم ته به یي ننباسو، او ډیر بد ځاي د ورتللو دې».

نو هر څوک چه په هر کار کښی د الله تعالی او دهغه د رسولﷺ څخه سر غړونه کوي، هغه ددغه ګناه په سبب فاسق دې، او پخپل دغه کار کښی

ګمراه او بې لارې دې، اګر که هغه ځان ته باني لټوي چه یا یې کوم مصلحت لټولو، او یا هم د کومې مفسدې مخنیوې یې کولو؛ ځکه د الله تعالی څخه په سرغړونه هیڅ ډول مصلحت لاس ته نه راځي، او همدارنګه د الله تعالی په قهر کولو باندې د هیڅ ډول مفاسدو مخه نه نیول کیږي.

او هرڅوک چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ څخه په سرغړونه باندې امر کوي او دا کار خلکو ته ښه ښکاره کوي نو دا شخص شیطان دې، هغه که بشري شیطانان وي او که جنّي شیطانان وي؛ ځکه د اسلام څلورم خلیفه علي بن ابي طالبؓ فرمایي:

«لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ». [رواه أحمد ومسلم].

ترجمه: «یعنی د الله تعالی په مخالفت او سرغړونه کښې د هیچا اطاعت او پیروي روا نه ده».

او په دې کښې ټول هغه څوک شامل دي چه په عقیده، عباداتو او معاملاتو او د ژوند په نورو اړخونو کښې د الله تعالی په مخالفت او سرغړونه امر کوي او دغې خوا ته خلک بلي.

همدارنګه هرڅوک چه د بدعت یا درسول اللهﷺ له طریقې څخه بلې طریقې ته بلنه ورکوي، نو دغه شخص پخپله هم ګمراه او بې لارې دې، او نور هم له سمې لارې بې لارې کوي، الله سبحانه وتعالی فرمایي:

﴿وَأَنَّ هَٰذَا صِرَٰطِي مُسۡتَقِيمٗا فَٱتَّبِعُوهُۖ وَلَا تَتَّبِعُواْ ٱلسُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمۡ

عَن سَبِيلِهِۦۚ ذَٰلِكُمۡ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ﴿١٥٣﴾ [الأنعام: ١٥٣].

ترجمه: «او بیشکه دغه مخکښې بیان شوی شیان ځما خوا ته لار ده سمه، نو پدغه لار پسې ورپسې شئ او پیروي یي وکړئ، او پیروي مه کوئ د نورو لارو؛ ځکه په دغه سبب به د الله تعالی لاری نه بې لاری شئ، او په همدی کار باندي الله تعالی تاسو ته وصیت او کلك امر کوي ددی لپاره چه تاسو د هغه د مخالفت او سرغړونی څخه ځان وساتئ».

## څلورم درس: د توحید فضیلت

**د توحيد معنی:** خپل دين او عبادت او بندګي يوازې يو الله تعالی لپاره خاص کول، او همدا توحيد په اسلام کښې د يو بنده دداخليدو لپاره لومړنۍ شرط دی.

او همدا توحيد د «لا إله إلاّ الله» د ګواهۍ معنی ده، نو هغه څوک چه پخپل عبادت او بندګۍ کښې همدا يو الله تعالی يو ونه ګڼي، داسې بنده مسلمان کيدې نشي، اګر که هغه د مسلمانۍ دعوا هم کوي، او په ژبه د «لا إله إلاّ الله محمد رسول الله» کلمه هم وايي، نو دده دا کلمه ويل تر هغه پورې نه صحيح کيږي چه ترڅو يي د هغې د غوښتنو موافق عمل نه وي کړې، او هغه دا چه خپل دين عبادت او بندګي يوازې يو الله تعالی ته خاص کړي، او د الله تعالی پرته د نورو معبودانو له بندګۍ او عبادت څخه ځان بلکل لرې وساتي، او د شرک او مشرکينو څخه خپله بيزاري اعلان کړي، لکه چه الله سبحانه وتعالی فرمايي:

﴿لَآ إِكۡرَاهَ فِي ٱلدِّينِۖ قَد تَّبَيَّنَ ٱلرُّشۡدُ مِنَ ٱلۡغَيِّۚ فَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤۡمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسۡتَمۡسَكَ بِٱلۡعُرۡوَةِ ٱلۡوُثۡقَىٰ لَا ٱنفِصَامَ لَهَاۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ٢٥٦﴾ [البقرة: ٢٥٦].

ترجمه: «نشته زور زیاتې په دین کښې، ځکه واضح او ښکاره شوی ده سمه لار له کږی لاری څخه، نو که څوک کفر او انکار وکړي له منلو د طاغوت څخه، او ایمان راوړي په یو الله تعالی باندی، نو یقیناً ده منګولی لګولی په ټینګه رسی باندی چه هیڅ شکیدل نشته هغی لره، او الله تعالی اوریدونکې او پوهه دې».

همداشان الله په بل ځاي کښی د مؤمنانو په صفت کښی فرمايي:

﴿وَٱلَّذِينَ ٱجۡتَنَبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ أَن يَعۡبُدُوهَا وَأَنَابُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰۚ فَبَشِّرۡ عِبَادِ ١٧﴾ [الزمر: ١٧].

ترجمه: «او مؤمنان هغه کسان دي چه ځان ساتي له عبادت او بندګی د طاغوت څخه، او راوګرزي په عبادت او بندګی خپلی کښی یواځی الله تعالی ته، نو د همدوئ لپاره زیرې دې، نو اي پیغمبره زیرې ورکړه زما بندګانو ته».

او همدارنګه الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَقَدۡ بَعَثۡنَا فِي كُلِّ أُمَّةٖ رَّسُولًا أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱجۡتَنِبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ﴾ [النحل: ٣٦].

ترجمه: «بیشکه مونږ لیږلې دې په هر امت کښی یو پیغمبر او استاذې په دې خبره چه عبادت او بندګي وکړئ یواځی د یو الله تعالی او ځان وساتی د عبادت او بندګی د طاغوت څخه».

او طاغوت هرهغه چا ته ویل کیږي چه د الله تعالی نه غیر یي عبادت اوبندګي کیږي، او هغه درباندی راضي وي.

**نو د توحید لوئ فضیلت دادې چه هغه د اسلام اصل، بنیاد او بنسټ**

**دې،** او د يو بنده په اسلام کښې داخليدل پر ته له توحيد منلو څخه نه صحيح کيږي.

د موحّد ثواب په ټولو ثوابونو کښې لوئ دې: او هغه د الله عز وجلّ رضامندي، له اوره خلاصې، او جنت ته ننوتل، او د الله تبارک وتعالی ليدل دي.

لکه چه معاذ بن جبلﷺ له رسول اللهﷺ څخه روايت کوي چه هغه فرمايلي دي:

«مَا مِنْ أَحَدٍ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ صِدْقًا مِنْ قَلْبِهِ إِلاَّ حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ». [رواه البخاري].

ترجمه: «نشته داسې يوه بنده چه هغه د «**لا إله إلاّ الله** وأن محمداً رسول الله» ګواهي وکړي، او دا ګواهي يي په رښتيني او له زړه څخه وي، مګر خو الله تعالی يي په اور باندې حرام کړي».

همدارنګه عبادة بن صامتﷺ وايي چه رسول اللهﷺ فرمايلي دي:

«مَنْ شَهِدَ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، وَأَنَّ عِيسَى عَبْدُ اللهِ وَرَسُولُهُ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ أَدْخَلَهُ اللَّهُ الْجَنَّةَ عَلَى مَا كَانَ مِنَ الْعَمَلِ». [متفق عليه]

ترجمه: «هغه څوک چه ګواهي وکړي چه نشته لايق د عبادت او بندګۍ مګر يو الله تعالی دې، په داسې حال کښې چه يو دې او هيڅ ډول شريک او برخوال نلري، او دا ګواهي وکړي چه محمدﷺ د الله تعالی بنده او پيغمبر دې، او عيسیعليه السلام د الله تعالی بنده او پيغمبر دې او(پيدا شوې دې په)

هغه کلمه چه مریم علیها السلام ته یي ورغورزولی وه، او د الله تعالی لخوا روح دې، او همدا ګواهي وکړي چه جنت حق دې، اور حق دې، نو الله تعالی به یي جنت ته داخل کړي، سره له هغه عمله چه ده کړې وي، یعنی اګر که ډیر ښه نه وي، او یا دا معنی چه داخل به کړي الله ده لره جنت ته په هغه درجه چه ده یي عمل کړې وي، یعنی ننوتل جنت ته په توحید دي، او تفاوت ددرجاتو بیا په اعتبار د عمل سره دې».

نو د موحد مؤمن سره الله تعالی د جنت وعده کړی ده اګر که ده ځینی ګناهونه هم کړي وي، ځکه کیدې شي دغه نور ګناهونه چه له شرکه راټیټ دي الله تعالی یي ورته وبخښي او عفو ورته وکړي، او یا به ورته د هغه ګناه په اندازه عذاب په دنیا کښی ورکړي، یا په قبر کښی او یا د قیامت په میدان کښی او یا په اور کښی، خو په آخر کښی دې د الله تعالی په حکم جنت ته ځي.

او هر چه مشرک دې نو دده خو په ټولو کښی لویه سزا ده، او هغه د الله عزّوَجَلّ قهر غصه او تل تر تله د جهنم په اور کښی پاتی کیدل او د الله عزّوَجَلّ له لیدلو څخه بی برخی کیدل، الله تعالی فرمایي:

﴿إِنَّهُۥ مَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ ٱلۡجَنَّةَ وَمَأۡوَىٰهُ ٱلنَّارُۖ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنۡ أَنصَارٖ ٧٢﴾ [المائدة: ۷۲].

ترجمه: «بیشکه شان دادې هغه څوک چه شریکوال او برخوال ومني د الله تعالی سره نو یقیناً حرام کړ الله پر ده باندې جنت، او ځاي د ورتللو دده اور دې، او نشته د ظالمانو لپاره هیڅوک مددګار».

همداراز په بل ځاي کښی الله تعالی فرمایي: ﴿كَلَّآ إِنَّهُمۡ عَن رَّبِّهِمۡ يَوۡمَئِذٖ

لَّمَحۡجُوبُونَ ۞ ثُمَّ إِنَّهُمۡ لَصَالُواْ ٱلۡجَحِيمِ ۞﴾ [المطففین: ۱۵-۱٦].

ترجمه: «هیڅکله داسی نه ده لکه چه دا کافر یي وایي، بیشکه دوئ به په دغه ورځ د قیامت له خپل رب او پروردګار څخه پناه او په پرده کښی وي(یعنی د الله تعالی د دیدار او لیدنی له نعمت څخه به بي برخی وي)، او بیا به بیشکه دوئ جهنم ته داخلیدونکي وي».

او شرک داسی ګناه ده چه الله عزّوَجَلّ یي نه بخښي، او نه له مشرکینو څخه عفو کوي، بلکه دوئ که په شرک باندی مړه شي او توبه ورڅخه ونه باسي، نو ددوئ لپاره یي د تل لپاره دردناک عذاب واجب او فرض کړې دې، چه خامخا به ورته رسیږي، لکه چه الله ﷻ فرمایي:

﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ وَيَغۡفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُۚ وَمَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلَٰلَۢا بَعِيدًا ۞﴾ [النساء: ۱۱٦].

ترجمه: «بیشکه الله عزّوَجَلّ بخښنه نه کوي د شرک د ګناه، او بخښي هغه ګناه چه له شرک پرته وي هغه چا ته چه د الله عزّوَجَلّ ورته خوښه شي، او هغه څوک چه د الله ﷻ سره شریک او برخَوال ومني نو یقیناً دې ګمراه او بی لاری شو په ګمراهی لری سره له حق نه».

او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه له رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چه هغه فرمایلي دي: «مَنْ مَاتَ وَهْوَ يَدْعُو مِنْ دُونِ اللهِ نِدًّا دَخَلَ النَّارَ وَقُلْتُ أَنَا مَنْ مَاتَ وَهْوَ لاَ يَدْعُو لِلَّهِ نِدًّا دَخَلَ الْجَنَّةَ». [رواه البخاري].

ترجمه: «هغه څوک چه مړ شو په داسی حال کښی چه هغه د الله عزّوَجَلّ څخه پرته بل څوک رابللو او چیغه یي ورته وهله نو هغه به اور ته

ننوځي».

ابن مسعود رضي الله عنه وايي: او ما ورسره وويل: هغه څوک چه مړ شو او هغه له الله تعالی سره شريک نه رابلي نو هغه به جنت ته داخل شي.

د شرک معنی دا ده چه د الله عزّوَجَلّ د عبادت او بندګۍ ترڅنګ د بل چا عبادت او بندګي هم وشي، او دغه غير الله د الله عزّوَجَلّ سره په عبادت او بندګۍ کښې شريکوال او برخَوال وګڼل شي، خو څوک چه د الله تعالی سره بل څوک شريکوال او برخَوال ومني نو دده مخکني نيک عمل تباه او برباد او دي له تاوانيانو څخه کيږي؛ لکه چه الله سبحانه وتعالى فرمايي: ﴿وَلَقَدۡ أُوحِيَ إِلَيۡكَ وَإِلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكَ لَئِنۡ أَشۡرَكۡتَ لَيَحۡبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ٦٥ بَلِ ٱللَّهَ فَٱعۡبُدۡ وَكُن مِّنَ ٱلشَّٰكِرِينَ ٦٦﴾ [الزمر:٦٥-٦٦].

ترجمه: «او بيشکه وحيی شوی ده تاته - اي محمد صلى الله عليه وسلم -، او هم وحيی شوی ده هغه پيغمبرانو ته چه له تا څخه مخکښی وو، وحيی شوی ده ددی خبری چه که تا شرک وکړ د الله تعالی سره نو خامخا برباد به شي ستا نيک عمل او خامخا ته به د تاوانيانو له جملی څخه شی، بلکه ته عبادت او بندګي وکړه يواځی د يو الله عزّوَجَلّ، او ته د شکرګزارو له جملی څخه شه».

**۲/ دتوحيد دوهم فضيلت:** او هغه دا چه توحيد د هر عمل د قبول لپاره اساسي شرط دې، نو د مشرک ټول اعمال الله سبحانه وتعالى ته د منلو او قبلولو وړ نه دي، بلکه د اسلام دين څخه بل هر دين د الله سبحانه وتعالى په وړاندی د منلو او قبلولو وړ نه دې، لکه چه الله عزّوَجَلّ فرمايي:

﴿وَمَن يَبۡتَغِ غَيۡرَ ٱلۡإِسۡلَٰمِ دِينٗا فَلَن يُقۡبَلَ مِنۡهُ وَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِنَ

ٱلۡخَٰسِرِينَ ﴿٨٥﴾﴾ [آل عمران: ٨٥].

همدارنګه الله جل جلاله د ډېرو انبیاؤ له یادونې وروسته فرمایي:

﴿وَلَوۡ أَشۡرَكُواْ لَحَبِطَ عَنۡهُم مَّا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴿٨٨﴾﴾ [الأنعام: ٨٨].

ترجمه: «او کچیرې بالفرض دغه انبیاء -علیهم السلام- هم شرک وکړي نو ددوئ کړي نیک عملونه به برباد او ابته شي».

او د کفارو په هکله الله ﷻ فرمايي:

﴿وَقَدِمۡنَآ إِلَىٰ مَا عَمِلُواْ مِنۡ عَمَلٖ فَجَعَلۡنَٰهُ هَبَآءٗ مَّنثُورًا ﴿٢٣﴾﴾ [الفرقان: ٢٣].

ترجمه: «او قصد کړې دې مونږ هغه عمله ته چه دوئ کړې وي، نو وګرزوو مونږ هغه لره ګرد او غبار او دوړه الوزولی شوی».

نو د مشرک عمل برباد او نامنل شوې دې؛ ځکه الله عزّوَجَلّ د هیڅ مشرک شخه هیڅ یو عمل نه قبلوي.

او ددې پر عکس د مؤمن موحد عمل د الله تعالی په وړاندې مقبول او منظور دې اګر که لږ هم وي، بلکه دغه لږ عمل ورته الله ﷻ څو چنده زیاتوي.

**۳/ د توحید بل فضیلت دادې چه د مؤمن موحد په زړه کښې آرام، قلبي سکون، او زړه يي مطمئن وي؛** ځکه چه موحد یواځې یو پروردګار رابلي، چه هغه اوریدونکې لیدونکې او په هر څه پوهه، توان لرونکې مهربان او رحم کونکې دې، ټول اختیارات د هغه په لاس کښې دي، ګټه او تاوان رسوَل د هغه په لاس کښې دي.

نو نشته لایق د عبادت اوبندګۍ مګر همدغه یواځې یو الله ﷻ دې، او

مؤمن د همدغه یو الله عزّوَجَلّ عبادت او بندګي کوي، به همغه باندي توکل او اعتماد کوي، او د هغه د رحمت او مهربانی امید لري او د همغه د عذاب څخه ویریږي، او د همغه په خوشحالی او رضامندئ پسی ورپسی وي، او د هغه فضل اورحم پسی اوړي راوړي، او دهغه زړه د الله تعالی په ذکر باندي مطمئن وي، په الله تعالی باندي د اعتماد له کبله له بل هرچا څخه بی پروا وي، او له همدی سببه عزتمند او قوي وي، په یو الله توکل کوي، له بل چا څخه نه ویریږي او نه هم خفه کیږي، او نه ګمراه او بی لاری کیږي او نه به بدبخته وي.

خو په مقابل کنبی مشرک د الله پرته خپل مشکل ته هغه څوک رابلي چه نه ورته ګټه رسولې شي او نه ورڅخه ضرر دفع کولې شي، د الله تعالی پرته د نورو ډیرو معبودانو ترمنځ دده زړه حیران وي، حال دا چه هغوئ ټول دده له بلنو او چیغو څخه ناخبره وي.

الله تَعَالَی د یوسف ﷺ دعوت رانقلوي چه فرمایي:

﴿ءَأَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ ٱللَّهُ ٱلْوَٰحِدُ ٱلْقَهَّارُ ﴿٣٩﴾﴾ [یوسف: ۳۹].

ترجمه: «آیا ډیر معبودان چه سره مختلف وي غوره او بهتر دي او که یواځی یو الله تعالی چه یو او زورور دې».

همدارنګه الله تعالی فرمایي:

﴿ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيهِ شُرَكَآءُ مُتَشَٰكِسُونَ وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًاۚ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٩﴾﴾ [الزمر: ۲۹].

ترجمه: «مثال بیانوي الله تعالی د یو غلام (مریي)سړي چه په هغه کنبی

شریکان وي یو له بل سره مخالف، او د بل غلام(مریي) سړي چه هغه ځانته د یو سړي وي، آیا دوي دواړه سره په صفت د ژوند او راحت کښې سره برابر دي؟(بلکه نه دي برابر) نو ټول د کمال صفتونه خاص یو الله تعالی لره دي خو ډیر له دوي څخه نه پوهیږي».

همداراز فرمایي:

﴿وَمَنۡ أَضَلُّ مِمَّن يَدۡعُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَن لَّا يَسۡتَجِيبُ لَهُۥٓ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ وَهُمۡ عَن دُعَآئِهِمۡ غَٰفِلُونَ ۝٥ وَإِذَا حُشِرَ ٱلنَّاسُ كَانُواْ لَهُمۡ أَعۡدَآءٗ وَكَانُواْ بِعِبَادَتِهِمۡ كَٰفِرِينَ ۝٦﴾ [الأحقاف:٥-٦].

ترجمه: «او څوک دې ډیر ګمراه او بی لاری له هغه چا څخه چه رابلي د الله تعالی پرته هغه څوک چه که دې ورته اواز کوي او رابلي یي نو تر قیامته پوری دده اواز نه اوري، او نه ورسره کومک او مرسته کولې شي، بلکه هغوئ دده له رابللو څخه ناخبره دي، او کله چه خلك د قیامت په ورځ راژوندي او راغونډ کړل شي نو دا معبودان به له دغه عابدانو سره دښمني کونکي وي، او ددوئ په عبادت او بندګۍ به کفر کونکي او انکار کونکي وي».

همدارنګه الله عزّوَجَلّ په بل ځاي کښې فرمایي:

﴿ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَمۡ يَلۡبِسُوٓاْ إِيمَٰنَهُم بِظُلۡمٍ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلۡأَمۡنُ وَهُم مُّهۡتَدُونَ ۝٨٢﴾ [الأنعام: ٨٢].

ترجمه: «هغه کسان چه مؤمنان دي او ګډ کړې یي نه دې د خپل ایمان سره شرك، نو همدغه خلك ددوي لپاره امن دې او همدوئ په سمه لار

دي».

رسول الله ﷺ دلته په دي آیت شریف کښی د «ظلم» معنی په شرک سره کړی ده، او په دلیل کښی یي د سورت لقمان هغه آیت شریف پیش کړې دې چه پکښی راځي:

﴿إِنَّ ٱلشِّرۡكَ لَظُلۡمٌ عَظِيمٌ ١٣﴾ [لقمان: ۱۳].

ترجمه: «بیشکه شرک ډیر لوئ ظلم دې».

**۴/ د توحید له فضایلو څخه څلورم فضیلت دادې چه توحید د الله عزَّوَجَلَّ د محبت لپاره ډیر لوئ سبب دې** چه لدي کبله الله تعالی له بنده سره محبت کوي، او همدارنګه ډیر برکتونه د الله ﷻ له محبت څخه لاس ته راځي لکه: د ګناهونو بخشش، له سختو سختیو څخه خلاصې، د نیکیو دوچنده کیدل، ددرجاتو پورته کیدل، د شرونو او آفتونو څخه د الله تعالی حفاظت، د دښمنانو د پلمو شنډول، او د سوچونو او غمونو ختمول، د نعمتونو او برکتونو لاس ته راتلل، د عذابونو او عقوبتونو څخه بچ کیدل، او د نفس او شیطان له غلامۍ او مریيتوبه، او د بنده له بندګۍ څخه آزادي، د ایمان او اخلاص خوږوالې او خوند څکل، او د الله تعالی ملاقات ته شوق او له تورو تیارو څخه رڼاګانو ته وتل، چه د شرک له تورو تیارو څخه د توحید سپینی رڼا ته ووځي، او د ګناه له ذلت او خوارۍ څخه د الله اطاعت او پیروۍ عزت ته ووځي، او د جهل او ناپوهۍ څخه د علم او پوهی رڼا ته ووځي، او د شک او حیرانتیا څخه یقین ته ورشي، او دګمراهۍ له ډیرو لارو څخه د الله ﷻ یوی سمی لاری ته برابر شي.

## د موحدينو تر منځ تفاضل:

مسلمانان د توحيد په تحقيق کښې سره يو شان نه دي، بلکه ددوئ تر منځ سره په درجو کښې ډير توپير وي، او هر څومره چه يو بنده کښې د الله تعالى لپاره اخلاص ډير وي، نو هومره يي د توحيد له فضايلو څخه برخه لويه وي، او په همدغه اندازه يي د الله تعالى د رضامندئ ولايت مهربانئ رحمت او برکتونو او په دنيا او آخرت کښې د ثوابونو برخه لويه وي.

او دده د اخلاص په اندازه د شيطان له سلطې او ضررونو څخه دده خلاصيدل هم وي، لکه چه الله تعالى د شيطان د قسم او سوګند په هکله چه هغه به بنيادمان بې لارې کوي، نو الله تعالى وفرمايل: ﴿قَالَ رَبِّ بِمَآ أَغۡوَيۡتَنِي لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَأُغۡوِيَنَّهُمۡ أَجۡمَعِينَ ۝٣٩ إِلَّا عِبَادَكَ مِنۡهُمُ ٱلۡمُخۡلَصِينَ ۝٤٠ قَالَ هَٰذَا صِرَٰطٌ عَلَيَّ مُسۡتَقِيمٌ ۝٤١ إِنَّ عِبَادِي لَيۡسَ لَكَ عَلَيۡهِمۡ سُلۡطَٰنٌ إِلَّا مَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلۡغَاوِينَ ۝٤٢﴾ [الحجر: ٣٩-٤٢].

ترجمه: «وويل شيطان: اي پروردګاره ! لدي کبله چه زه دې بې لارې کړم، نو خامخا به ښايسته ښکاره کوم دی بنيادمانو ته ددنيا څيزونه او ژوند، او ګمراه او بې لارې به کړم دوئ ټول، مګر خو به ګمراه او بې لارې نشي، بلکه بچ به شي هغه ځينې خاص بندګان ستا، نو وويل ورته الله ﷻ: دغه ځما لار ده ما طرف ته سمه، بيشکه نشته تا لره ځما پر بندګانو باندې کوم زور، مګر هغه څوک چه ستا پيروي کوي د ځينو بې لارو او ګمراهانو او سرکښانو او سرغړوونکو څخه».

او په بل ځاي کښې الله عزّوَجَلّ فرمايي:

﴿فَإِذَا قَرَأۡتَ ٱلۡقُرۡءَانَ فَٱسۡتَعِذۡ بِٱللَّهِ مِنَ ٱلشَّيۡطَٰنِ ٱلرَّجِيمِ ۝٩٨ إِنَّهُۥ لَيۡسَ لَهُۥ سُلۡطَٰنٌ عَلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَلَىٰ رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُونَ ۝٩٩ إِنَّمَا سُلۡطَٰنُهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ يَتَوَلَّوۡنَهُۥ وَٱلَّذِينَ هُم بِهِۦ مُشۡرِكُونَ ۝١٠٠﴾ [النحل: ۹۸-۱۰۰].

ترجمه: «کله چه ته قرآنکریم لولی نو پناه وغواړه په الله تعالی پوری له رټلي شوي شیطان څخه؛ بیشکه نشته شیطان لره زور او توان په هغه کسانو چه کامل ایمان لرونکي دي، او په خپل رب او پروردګار باندي توکل او اعتماد کوي، بیشکه دهغه زور او توان په هغه چا بَر دي چه له شیطان سره دوستي کوي، او په هغه کسانو چه شیطان د الله تعالی سره شریکوي په عبادت او بندګۍ کښی».

نو هغه څوک چه په توحید او اخلاص کښی د احسان درجی ته ورسیږي، او د شرک اکبر او شرک اصغر له شبهو څخه خلاص وي، او د الله عزّوَجَلّ داسی عبادت او بندګي کوي لکه دي چه الله تعالی ویني، نو داسی کسان جنت ته پرته له کوم حساب کتاب څخه داخلیږي، او هلته هم د جنت لوړی لوړی درجی لاس ته راوړي، الله دی په خپل فضل او مهربانۍ زمونږ برخه هم پکښی وکړي.

# پنځم درس: د دین اسلام معنی

الله سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ فرمايي:

﴿إِنَّ ٱلدِّينَ عِندَ ٱللَّهِ ٱلۡإِسۡلَٰمُ﴾ [آل عمران: ١٩].

ترجمه: «بیشکه صحیح او قبول دین د الله عزّوَجَلّ په وړاندی یواځی د اسلام مقدّس دین دی».

همدارنګه يي فرمايلي دي:

﴿وَمَن يَبۡتَغِ غَيۡرَ ٱلۡإِسۡلَٰمِ دِينٗا فَلَن يُقۡبَلَ مِنۡهُ وَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ٨٥﴾ [آل عمران: ٨٥].

ترجمه: «او هغه څوک چه لټوي د اسلام مقدس دین څخه پرته بل دین، نو هیڅکله به ورڅخه ونه منل شي، او حال دا چه داسی بنده به په آخرت کښی له تاوانیانو څخه وي».

همداراز فرمايي:

﴿فَإِلَٰهُكُمۡ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞ فَلَهُۥٓ أَسۡلِمُواْۗ وَبَشِّرِ ٱلۡمُخۡبِتِينَ ٣٤﴾ [الحج: ٣٤].

ترجمه: «نو معبود برحق ستاسو یو معبود دی (چه الله عزّوَجَلّ دی)، نو همدغه الله تعالی ته تسلیم او غاړه ایښودونکي شی، او زیرې ورکړه اي پیغمبره عاجزي کونکو ته».

او په بل ځاي کښی فرمايي:

﴿وَقُل لِّلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡأُمِّيِّـۧنَ ءَأَسۡلَمۡتُمۡۚ فَإِنۡ أَسۡلَمُواْ فَقَدِ ٱهۡتَدَواْۖ وَّإِن تَوَلَّوۡاْ فَإِنَّمَا عَلَيۡكَ ٱلۡبَلَٰغُۗ وَٱللَّهُ بَصِيرُۢ بِٱلۡعِبَادِ ٢٠﴾ [آل عمران:۲۰].

ترجمه: «او ووايه اي پيغمبره اهل کتابو او اميانو (يعنی مشرکينو)ته: آيا تاسو اسلام راوړئ؟ نو که دوئ اسلام راوړ نو دوئ هم په سمه لار شو، او که يي له اسلام څخه مخ وګرزولو، (نو ته غم مه کوه)په تا باندی فقط رسوَل د حق دي، او نور نو الله ﷻ ښه ليدونکي دې خپلو بندګانو لره او د هغوئ عملونو لره».

همدا ډول الله ﷻ په بل ځاي کښی فرمايي:

﴿وَمَنۡ أَحۡسَنُ دِينٗا مِّمَّنۡ أَسۡلَمَ وَجۡهَهُۥ لِلَّهِ وَهُوَ مُحۡسِنٞ﴾ [النساء: ۱۲۵].

ترجمه: «او څوک دي ډير ښايسته په دين کښی له هغه چا نه چه تابع کړې او تسليم کړې يي دې مخ خپل يو الله عزّوَجَلّ ته، په داسی حال کښی چه دی نيک عمل کونکې هم وي».

نو د اسلام معنی: په دين او عبادت او بندګی کښی يو الله خاص کول، او د الله تعالی اوامر او احکامو ته غاړه ايښودل.

او اسلام د عقيدی او شريعت دواړو نوم دې، نو د عقيدی اساس صحيح علم دې، او شريعت نه مراد هغه احکام دي چه په بنده باندي يي منل او عملی کول فرض دي، الله عزّوَجَلّ فرمايي:

﴿وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ حُنَفَآءَ وَيُقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ

وَيُؤۡتُواْ ٱلزَّكَوٰةَۚ وَذَٰلِكَ دِينُ ٱلۡقَيِّمَةِ ۝٥﴾ [البينة:٥].

ترجمه: «دی خلکو ته امر نه دې شوې مګر ددی خبرې چه عبادت او بندګي وکړي د یو الله عزّوَجَلّ په داسې حال کښې چه خالص کونکي وي الله لپاره ددین او عبادت خپل، او په داسې حال کښې چه کلك ولاړ وي پر حق او مایل نه وي باطل خوا ته، او پوره پر وخت له آدابو سره ادا کوي لمونځ، او ورکوي زکات او همدا کارونه محکم دین دې چه مستقیم دې او هیڅ کوږوالې پکښې نشته».

نو یو بنده تر هغه پورې مسلمان کیدې نشي تر څو چه دوه شرطونه پوره نکړي:

**لومړې:** د دین، عبادت اوبندګۍ یواځې یو الله تعالی لپاره خاص کول، نو الله عزّوَجَلّ به په عبادت او بندګۍ یو ګڼي، او له شرك څخه به ځان ساتي.

**دوهم:** الله عزّوَجَلّ ته غاړه ایښودل، چه د هغه اوامر به مني او پر ځان به یې عملي کوي او له منع شوو شیانو څخه به اجتناب او ځان ساتي.

نو هغه څوك چه په عبادت او بندګۍ کښې یواځې یو الله خاص کوي، او د هغه اوامر ته غاړه ږدي همدا بنده مسلمان او رښتیني مؤمن دې.

له دې تفصیل څخه ښکاره شوه چه مشرك مسلمان کیدې نشي؛ ځکه ده خپل دین او عبادت یو الله عزّوَجَلّ ته خاص کړي نه دي، همداډول د الله تعالی له عبادت او بندګۍ څخه تکبر کوونکې هم مسلمان کیدې نشي؛

ځکه هغه د الله تعالی اوامر ته غاړه ایښی نه ده، لکه چه الله ﷻ فرمايي:

﴿لَّن يَسۡتَنكِفَ ٱلۡمَسِيحُ أَن يَكُونَ عَبۡدٗا لِّلَّهِ وَلَا ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ ٱلۡمُقَرَّبُونَۚ وَمَن يَسۡتَنكِفۡ عَنۡ عِبَادَتِهِۦ وَيَسۡتَكۡبِرۡ فَسَيَحۡشُرُهُمۡ إِلَيۡهِ جَمِيعٗا ١٧٢ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَيُوَفِّيهِمۡ أُجُورَهُمۡ وَيَزِيدُهُم مِّن فَضۡلِهِۦۖ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ ٱسۡتَنكَفُواْ وَٱسۡتَكۡبَرُواْ فَيُعَذِّبُهُمۡ عَذَابًا أَلِيمٗا وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ وَلِيّٗا وَلَا نَصِيرٗا ١٧٣﴾ [النساء: ۱۷۲-۱۷۳].

ترجمه: «هیڅکله بد نه ګڼي مسیح عیسی عليه السلام چه هغه دی د الله تعالی بنده وي، او نه بد ګڼي دا کار الله تعالی ته نزدی او مقرب ملایکی، او هغه څوک چه بد وګڼي بندګي د الله تعالی او ځان لوئ وګڼي، زر دې چه الله عزّوَجَلّ به یي خپل ځان طرف ته راغونډ کړي، نو هغه کسان چه مؤمنان دي او نیک عملونه کوي نو پوره به ورکوي هغوي ته د هغوئ اجرونه، او ورزیاتوي ورته فضل او مهرباني خپله، او هر چه هغه کسان دي چه بد ګڼي بندګي د الله تعالی او ځان لوئ ګڼي نو عذاب به ورکړي هغوئ ته دردناک عذاب، او نه به مومي دوئ پرته له الله تعالی څخه څوک دوست او نه مرسته کونکې».

او مسلمانان د اسلام په ښایست او ښه والي کښی سره یو شان نه دي، بلکه دوئ یو له بل سره په بهترئ کښی توپیر او فرق لري، څومره چه د چا اخلاص بهتر وي، د الله تعالی تابعداري او پیروي یي کامله وي نو هومره هغوئ له نورو څخه بهتر او په درجو کښی لوړ وي.

نو دوئ هم د دين په هغه درى درجو باندي ويشل شوي دي چه رسول الله ﷺ د جبريل عليه السلام په هغه اوږد حديث شريف کښی بيان کړي دي، او هغه دا چه: ۱/ مرتبه د اسلام، ۲/ مرتبه د ايمان. ۳/ مرتبه د احسان.

او په ټولو مرتبو کښی بهتره او غوره مرتبه د احسان مرتبه ده، او وروسى د ايمان مرتبه او آخرنی يي د اسلام مرتبه ده، نو هر مؤمن مسلمان دې، خو هر مسلمان د مؤمن مرتبی ته نشي رسيدې.

او د اسلام ارکان پنځه دي لکه چه د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما په حديث شريف کښی راغلي دي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي:

«بُنِيَ الإِسْلاَمُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، وَإِقَامِ الصَّلاَةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ، وَصَوْمِ رَمَضَانَ» [متفق عليه].

ترجمه: «اسلام پر پنځه بنسټونو باندي جوړ دي:

۱/ د «أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمداً رسول الله» ګواهي کول، چه معنی يي مخکښی تيره شوه.

۲/ د لمونځ پوره په خپل وخت کښی له ټولو حقوق سره ادا کول.

۳/ د زکات ورکول.

۴/ د بيت الله شريف حج کول.

۵/ او د رمضان د مبارکی مياشتی روژه نيول».

داحديث شريف په صحيح بخاري او صحيح مسلم شريف کښی دې.

همدارنګه د معاذ بن جبل رضي الله عنه په روايت کښی رسول الله ﷺ فرمايي:

«رَأْسُ الْأَمْرِ الْإِسْلَامُ، وَعَمُودُهُ الصَّلَاةُ، وَذِرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ». [رواه أحمد من حديث مُعاذِ بن جَبَلٍ ﷺ].

ترجمه: «د ټولو کارونو سر او مهم کار اسلام دی، او د اسلام ستن بیا لمونځ کول دي، او د کوپې سر يې د الله تعالی په لار کښې جهاد کول دي».

مؤمنان سره په ايمان کښې هم يو شان نه دي، بلکه دوئ په ايمانونو کښې سره توپير لري: نو ځینی يې په ايمان کښې له ځینی نورو څخه زيات وي؛ ځکه ايمان په اصل کښې د زړه تصديق او په ژبه وينا او په اندامونو باندي عمل کولو ته وايي، چه نيکو اعمالو باندی زياتيږي او په ګناهونو باندی کميږي.

او هر څومره چه ديو بنده د زړه تصديق قوي او مضبوط وي او وينا او عمل يې له نورو ښايسته وي، نو د هغه د هغه ايمان هم له هغوئ څخه لوئ وي.

او کله چه يو بنده ګناه وکړي نو دده ايمان کم شي، خو کله چه بيرته توبه وباسي او خپل ځان او عمل اصلاح کړي نو الله ورله توبه قبوله کړي، او بيرته ورله ايمان زيات کړي.

د ايمان پوره کيدل او کمال په هغه څه راځي چه رسول الله ﷺ پری د ايمان پوره والی فرمايلې دې لکه چه فرمايي:

«مَنْ أَحَبَّ لِلَّهِ وَأَبْغَضَ لِلَّهِ وَأَعْطَى لِلَّهِ وَمَنَعَ لِلَّهِ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الإِيمَانَ».
[رواه أبو دَاوُدَ وغيرُه من حديثِ أبي أُمامة البَاهِلِيِّ ﷺ].

ترجمه: «هغه څوك چه د يو چا سره محبت او مينه د الله تعالی د رضامندۍ لپاره کوي، او د بل سره بغض او کينه هم د الله تعالی لپاره کوي، او ورکړه او منع هم د الله تعالی لپاره کوي، نو داسی بنده ايمان پوره کړې دې».

د الله لپاره خوښول د الله لپاره له چا سره محبت کولو څخه عام دې؛ ځکه د الله لپاره خوښول د ټولو هغه شيانو خوښولو ته شامل دې چه د الله عزّوَجَلّ له کبله خوښول کيږي: لکه اشخاص، کارونه عملونه اقوال او ويناوی، احوال اومقصدونه، اخلاق، او ځايونه او وختونه او داسی نور.

همدارنګه د الله عزّوَجَلّ لپاره ورکړه د مال له ورکړی څخه عامه ده، ځکه د الله تعالی لپاره ورکړه ټولو هغه شيانو ته شامله ده چه د الله تعالی د رضامندۍ لپاره ورکول کيږي، لکه: مال، جاه او اثر او رسوخ، علم، کوښښ او وخت، او همدارنګه منع هم دغه شان ده.

نو هغه څوك چه محبت او بغض او کينه يي د الله تعالی لپاره وي، ورکړه او منع يي د الله تعالی لپاره وي، نو همدغه مؤمن بنده دکامل ايمان خاوند دې، الله تعالی دی پخپل فضل زمونږ ايمانونه کامل کړي. آمين.

**دايمان اصول او بنسټونه:**

د ايمان اصول او بنسټونه شپږ دي، لکه چه رسول الله ﷺ بيان کړي دي چه فرمايي: «أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ وَمَلاَئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ».

ترجمه: «ایمان دادې چه ته ایمان ولری په الله ﷻ باندي، او ایمان ولری د هغه په ملایکو، کتابونو، پیغمبرانو، او ایمان ولری په ورځ وروستنی(قیامت)، او ایمان ولری په تقدیر باندی چه خیر وي او که شر وي نو دا ټول د الله تعالی لخوا مقدّر او لیکل شوې دې».

نو په هر مسلمان باندي فرض دي چه دا شپږ بنسټونه او اصول ومني او ایمان پری ولري، او هر څوک چه له دوئ څخه له یوه نه هم منکر شي هغه کافر او نا مسلمانه دې.

د ایمان نوری ډیری څانګی دي چه له دغه بنسټونو څخه سرچینه اخلي، لکه د ونو څانګی چه له ونی څخه سرچینه اخلي، نو څومره چه یو بنده په ایماني کارونو او خصلتونو باندی عمل ډیر کوي هومره دهغه ایمان زیاتیږي؛ لکه چه ابو هریره رضي الله عنه له رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چه هغه فرمایلي دي: «الإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ أَوْ بِضْعٌ وَسِتُّونَ شُعْبَةً فَأَفْضَلُهَا قَوْلُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الإِيمَانِ». [صحيح مسلم].

ترجمه: «ایمان څه دپاسه اویا، یا څه د پاسه شپیته څانګی لري، چه بهتره یي د «لا إله إلاّ الله» ویل دي، او ټیټه درجه یي له لاری څخه د ضرري شیانو لری کول دي، او حیا کول هم د ایمان یوه څانګه ده».

نو د ایمان له څانګو څخه مراد د ایمان خصلتونه او اجزا دي، چه ځینی یي په زړه پوری اړه لري، ځینی یي په ژبه پوری، او ځینی نور یي بیا په عمل

پورى اړه لري، لکه چه رسول اللهﷺ د هر يو لپاره مثال بيان کړې دې، نو «لا إله إلاّ الله» ويل په ژبه پورى اړه لري، او له لارى څخه د ضررې شيانو لرى کول عمل او په غړو پورى اړه لري، او حيا بيا د زړه عمل دې چه په زړه پورى اړه لري.

کله کله بيا داسى هم کيداي شي چه په يوه بنده کښې د ايمان د ځينى ځانګو تر څنګ د نفاق ځينى ځانګى هم وي، نو په ده کښې تر هغه د منافقت ځينى خصلتونه او عادتونه وي چه ترڅو يي پريښې نه وي، لکه چه رسول اللهﷺ فرمايي:

«أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا، أَوْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْ أَرْبَعَةٍ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا: إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ» [متفق عليه].

ترجمه: «څلور عادتونه دي چه په چا کښې راټول شي نو هغه خالص منافق وي، او که په چا کښې له هغى څخه يو عادت وو نو په هغه کښې به يو عادت د منافقت وي تر دي چه يي پريږدي او دغه عادتونه په لاندى ډول دي:

۱/ کله چه امانتګر وګڼل شي نو په امانت کښې خيانت کوي.

۲/ او کله چه خبرى کوي نو دروغ به پکښې وايي.

۳/ او چه کله له چا سره عهد پيمان او لوظ کوي نو پکښې خيانت به کوي.

۴/ او کله چه له چا سره په جنګ شي نو ښکنځل به کوي».

**د احسان معنی:**

داحسان تفصیل رسول الله ﷺ داسی بیان کړې دې چه فرمایلي یي دي:

«أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ».

ترجمه: «احسان دادې چه ته د الله ﷻ داسی عبادت او بندګي(په تواضع خشوع خضوع او حضور سره) وکړې لکه چه ته هغه وینی او ګوری یي، خو که ته هغه نه ویني نو هغه خو دي ګوري او ویني؛ ځکه له هغه څخه هیڅ پټ نه دي».

الله ﷻ هم مونږ ددي لپاره پیدا کړي یو چه مونږ وازمایي چه په مونږ کښی څوک ښه او ښایسته عمل کوي او څوک یي نه کوي، او الله تعالی مونږ پدی ازمیښت او امتحان خبر کړي یو چه زمونږ د پیدایښت یو مقصد همدا دې لکه چه الله ﷻ فرمایي:

﴿وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ وَكَانَ عَرْشُهُۥ عَلَى ٱلْمَآءِ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ [هود: ۷].

ترجمه: «الله هغه ذات دې چه اسمانونه او ځمکه یي په شپږو ورځو کښی پیدا کړل، او عرش یي پر اوبو د پاسه وو، (او ددی لپاره یي پیدا کړل چه)تاسو وازمایي چه کوم یو په تاسو کښی ښه او ښایسته عمل کوي».

همدارنګه په ځاي کښی الله عزّوَجَلّ فرمایي:

﴿ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلۡمَوۡتَ وَٱلۡحَيَوٰةَ لِيَبۡلُوَكُمۡ أَيُّكُمۡ أَحۡسَنُ عَمَلٗاۚ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡغَفُورُ ٢﴾ [الملك: ٢]. قال فُضَيْلُ بنُ عِيَاض: «﴿أَحۡسَنُ عَمَلٗا﴾ أي أخلصه وأصوبه».

ترجمه: «الله تعالی هغه ذات دی چه مرګ او ژوند يې پيدا کړي دي ددې لپاره چه تاسو وازمايي چه کوم يو په تاسو کښې ښه او ښايسته عمل کوي، او همدغه الله ﷻ ډير غالب او بخښونکې دی».

فضيل بن عياض رحمه الله د ﴿أَحۡسَنُ عَمَلٗا﴾ (ښايسته عمل په)تفسير کښې وايي چه: «(ښايسته عمل) هغه عمل ته وايي چه خالص د الله تعالی درضامندۍ لپاره وي، او بل د شريعت محمدي ﷺ سره برابر وي».

نو يو عمل تر هغه پوره ښه او ښايسته نه دی چه تر څو خالص د الله تعالی د رضامندۍ لپاره نه وي، او بل د رسول الله ﷺ د سنتو سره برابر نه وي.

نو درسول الله ﷺ د لارښوونی پيروي کول بنده د هر ډول زياتی او کمي څخه بچ کوي، او په دي سره ښه څرګنديږي چه د احسان مرتبه په شرک بدعت او هم په افراط او تفريط او په دين کښې کمي او زياتي باندي ماتيږي.

نو مشرک محسن کيدې نشي؛ ځکه هغه بدعمله دی، همدا رنګه بدعتي او زياتي کوونکې او کمې کوونکې هم بدعمله دی نو دا يو هم هيڅکله محسن نه دی.

**احسان هم دوه درجې لرى:**

**لمړې واجب او فرضي احسان:** او هغه دا چه د فرضي عبادتونو په ادا کولو کښې باید پوره اخلاص او درسول اللهﷺ پیروي موجوده وي، او هیڅ ډول زیاتې او کمې پکښې نه وي.

**دوهم: مستحب احسان:** او هغه دا چه بنده الله تعالی ته په نوافلو باندې ځان ورنژدې کړي، او د عباداتو د مستحباتو او آدابو د پوره کولو پوره خیال وساتي، او له هر ډول مشتبه او نا څرګندو شیانو او هم د مکروهاتو څخه ځان وساتي.

نو بنده به د الله تعالی داسې عبادت او بندګي کوي لکه چه الله تعالی ورته ګوري، او دې له دغه کتلو له خاطره د عبادت په ادا کولو کښې ښه کوښښ کوي چه په ډیر ښه شان سره یې ادا کړي، نو چه د کوم شي توان او طاقت نلري په هغه باندي ځان نه زوروي، او کوم هغه عبادت چه کولې شي چه دې الله عزّوَجَلّ ته ورنژدې کوي نو په هغه کښې کوتاهي نه کوي.

او احسان په هر عبادت او بندګۍ کښې د همغه عبادت په اندازه وي، خو یو جامعه ضابطه یې داده چه په عبادت او بندګۍ کښې د الله تعالی د رضامندۍ لپاره پوره اخلاص، او د رسول اللهﷺ د لارښووني پوره پیروي موجوده وي.

نو په اوداسه کښې احسان دادې چه ټول اندامونه پوره ووینځل شي، او ټول فرضونه او سنت او آداب د اوداسه په وخت کښې ادا شي، او د وینځلو

په کراتو کښې د شریعت له حد څخه تیرې ونشي.

او په لمانځه کښې احسان دادې چه پخپل اول وخت کښې د ټولو فرضونو واجباتو سننو سره، او په پوره خشوع اطمینان او د زړه په حضور سره ادا شي، لکه چه یو بنده د خپل ژوند آخرنې لمونځ ادا کوي، نو داسې یې ادا کړي لکه چه الله عزّوَجَلّ ورته ګوري او دې یې ادا کوي.

او په زکات او خیرات کښې احسان دادې چه هغه څه چه یو مؤمن بنده یې ورکوي نو په دي نیت یې ورکړي چه الله عزّوَجَلّ ته پرې خپل ځان نژدي کوي، او د الله تعالی د رحمت امید پرې کوي، او د الله تعالی له عذابه ویریږي او پدې سره له د الله تعالی له عذابه خپل ځان بچ کوي، او په عین وخت کښې هغه چا ته چه یې ورکوي له هغه څخه کومه بدله او شکرګزاري نه غواړي، او نه په دغه خیرات او زکات پسې وروسته ردی بدی وایي.

او بل دا چه د زکات او خیرات په وخت کښې د ښه مال د ورکولو کوښښ وکړي، اوله ردي او کم قیمته مال او هغه څه چه عموماً د انسان نفس یې ښه نه ګڼي له دغه ډول مال له ورکړی څخه دي ځان وساتي، او زکات او خیرات دي د خپل وخت څخه نه وروسته کوي، او یو محتاج او غریب باندي دی د هغه مال په اخیستلو کښې سختي نه کوي، او ځان دي پرې لوړ نه ګڼي، او نه دی په دغه ورکړه کښې سمعت او ریا کوي.

او همدارنګه په ټولو عبادتونو او معاملاتو کښې، یو مسلمان بنده ته

مناسب دا دي چه په هغه کښې د توان مطابق د احسان مرتبه ولټوي، او په هغې کښې د رسول الله ﷺ د لارښوونې پیروي وکړي.

هر څوک چه د احسان مرتبه پسې ګرزي او په دغه باندي حرص کوي او د الله تعالی څخه يي غوښتنه هم کوي نو ډیر امید شته چه الله ﷻ د احسان د مرتبې توفیق هم ورکړي؛ ځکه ابو الدرداء رضي الله عنه فرمايي:

«إِنَّمَا الْعِلْمُ بِالتَّعَلُّمِ، وَإِنَّمَا الْحِلْمُ بِالتَّحَلُّمِ، مَنْ يَتَحَرَّى الْخَيْرَ يُعْطَهُ، وَمَنْ يَتَّقِ الشَّرَّ يُوقَهُ». [رواه الطبراني في المعجم الكبير، الحديث (۱۷٦۳). قال الألباني: حديث حسن. انظر: صحيح الجامع، الحديث: (۲۳۲۸)].

ترجمه: «بیشکه علم او پوهه په زده کړه حاصلیږي، او حلم او صبر په صبر کولو او دځپل نفس واګی په لاس کښې نیولو سره حاصلیږي، او هغه څوک چه په خیر پسې ګرزي او لټوي يي نو ورته به ورکړ شي، او هغه څوک چه له شر څخه ځان ساتي او ځان ورڅخه بچ کوي نو ورڅخه به بچ کړل شي».

د احسان دروازې ډیری دي، لکه په صحیح مسلم شریف کښې چه د شداد بن اوس رضي الله عنهما روایت له رسول الله ﷺ څخه رانقل دې چه رسول الله ﷺ فرمايي:

«إنَّ اللهَ كَتَبَ الإحسانَ على كلِّ شيءٍ؛ فإذا قَتَلْتُم فَأَحْسِنُوا القِتْلَةَ، وإذا ذَبَحْتُم فأَحْسِنوا الذِّبْحَةَ، وَلْيُحِدَّ أحدُكُم شَفْرَتَهُ وَلْيُرِحْ ذَبيحَتَهُ». [صحيح مسلم]

ترجمه: «بیشکه الله ﷻ په هر شي کښې احسان فرض کړې دې ، نو چه

کله تاسو یو څوک وژلو(لکه په قصاص کښې مثلاً) نو په دغه وژنه کښې ورسره احسان وکړئ (یعنی مه یي زوروئ)، او کله مو چه حلالکه کوله(لکه د حلالو حیواناتو د ذبح او حلالونی په وخت کښې)، نو په حلالکه کښې احسان وکړئ، نو حلالونکې دی د حلالکی لپاره خپله چوړکی تیره کړي، او خپل هغه حیوان چه حلالوي یي هغه ته دي راحت وروبخښي(او نه دی زوروَي))».

لنډه دا چه الله تعالی په هر څه کښې د هغه شي سره مناسب احسان فرض کړې دې، لکه دلته چه رسول اللهﷺ د حلالکی احسان بیان کړې دې، نو هغه څوک چه د رسول اللهﷺ له لارښوونی څخه سرغړونه کوي او چوړکی نه تیره کوي، او د حلالکی د حیوان د راحت خیال نه ساتي نو هغه په حلالکه کښې احسان کونکې نه دې، او د رسول اللهﷺ پیرو نه دې.

په همدی سره په دین کښې د پوره تعمق او فقاهت اهمیت راڅرګندیږي، او له همدي نه احسان لټوونکې په عبادات او معاملاتو کښې د رسول اللهﷺ لارښوونه او د هغی اهمیت پیژني، نو کوښښ کوي چه د رسول اللهﷺ لارښوونه په اوداسه لمانځه خیرات زکات روژه حج جهاد، اخستلو(رانیولو) او خرڅولو، خوراک، څښاک، خوب، نکاح، واده، او عام ژوند، ښیګړه او د بیلابیلو ډولو خلکو سره تعامل کولو کښې، او همداسی په ټولو کارونو کښې درسول اللهﷺ لارښوونه پیژني او د هغی پیروي کوي.

او یو بنده د احسان مرتبی ته یواځی پخپل عمل نشي رسیدلاي، بلکه

ددي لپاره د الله تعالی توفیق ډېر ضروري دې؛ نو له دي کبله بنده باید د هر لمانځه څخه وروسته دا دعا ووایي چه: «اللَّهُمَّ أَعِنِّيْ عَلَى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ» [سنن أبي داود].

ترجمه: «یعنی اي الله له ماسره مرسته وکړی ستا په ذکر او یادونه کښی، او په شکر ادا کولو کښی، او د ښه او ښایسته عبادت په کولو کښی».

ځکه د بنده ضرورت او حاجت د الله تعالی مرستی او کومک ته او خاصةً د احسان مرتبی ته په رسیدلو کښی همیشه او بار بار پیښیږي.

## شپږم درس: د «عبادت» معنی

د عبادت معنی: تذلل، خضوع، غاړه ایښودل، سره له ډېره محبت او تعظیم نه.

او هر عمل چه په هغه سره یو معبود ته پرې نژدیکت حاصلولې شي عبادت بلل کیږي.

لدي کبله د اسلامي شرعی په اصطلاح کښې هم عبادت: یو جامع نوم دې چه ټولو هغه شیانو ته شامل دې چه الله عزّوَجَلّ یي خوښوي، که هغه وینا وي، او که ظاهر یا باطني اعمال وي.

او عبادت کله په زړه وي، کله په ژبه، او کله په غړو، خو الله عزّوَجَلّ خپلو بندګانو ته امر کړې دې چه د عبادت ټول انواع دي یواځې د یو الله ﷻ لپاره خاص کړل شي، او هیڅ ډول شریك او برخَوال دي ورسره پکښې نه وي، لکه چه الله ﷻ فرمایي:

﴿هُوَ ٱلۡحَيُّ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَٱدۡعُوهُ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَۗ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ٦٥﴾ [المؤمن:٦٥].

ترجمه: «الله عزّوَجَلّ هغه ذات دې چه همیشه ابدي ژوندې دې، نشته لایق د عبادت او بندګۍ مګر همدغه الله تعالی دې، نو تاسو همدغه الله تعالی

راوبلی، په داسی حال کښی چه خالص کونکي یاست هغه ته د خپل دین او عبادت او بندګی، ټول د کمال صفتونه الله عزّوَجَلّ لره دي چه پالونکې او پروردګار د عالمیانو دې».

همداشان الله ﷻ په بل ځای کښی فرمایي:

﴿قُلْ إِنِّيٓ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱللَّهَ مُخْلِصًا لَّهُ ٱلدِّينَ ۝١١﴾ [الزمر: ۱۱].

ترجمه: «اووایه ای پیغمبره ! بیشکه ماته حکم شوې دې چه زه بندګي وکړم یواځی د یو الله، په داسی حال کښی چه خالص کونکې یم هغه ته ددین او عبادت خپل».

همداراز الله ﷻ امر کړې دې چه د رسول الله ﷺ پیروي وشي او د الله تعالی عبادت د رسول الله ﷺ د لارښوونی موافق ادا او سر ته ورسول شي، لکه چه الله تعالی فرمایي:

﴿وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ۝٤٤﴾ [النحل: ٤٤].

ترجمه: «او ای پیغمبره ! تاته مو وحیي درلیږلی ده ددي لپاره چه ته بیان او واضح کړی خلکو ته هغه احکام چه دوئ ته ورلیږل شوي دي چه فکر پکښی وکړې».

همداډول په بل ځای کښی فرمایي:

﴿وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَٱنتَهُواْ﴾ [الحشر: ۷].

ترجمه: «او هغه څه چه رسول الله ﷺ یي تاسو ته درکوي او تاسو ته پری حکم کوي نو هغه واخلی عمل پری وکړی، او هغه څه چه تاسو ورځخه

منع کوي، نو ورځخه ځان وساتئ او منع شئ».

الله عزّوَجَلّ هم له هیچا څخه هیڅ یو عمل تر هغه پورې نه قبلوي چه پکښې دغه دوه شرطونه پوره نه وي: یو اخلاص اوتوحید، او بل متابعت او د رسول اللهﷺ پیروي کول.

بلکه بنده تر هغه مسلمان کیدې نشي چه په هغه کښې اخلاص او توحید نه وي، یعنې چه دعبادت او بندګۍ ټول انواع یې خالص د یو الله تعالی لپاره نه وي، او هم د رسول اللهﷺ پیروي په عبادت او نورو احوالو کښې پکښې نه وي.

نو یوائې هغه عبادت او بندګي د الله تعالی په وړاندې صحیح ده چه خالص د یو الله تعالی لپاره وي، او بل د رسول اللهﷺ له سنتو سره برابره وي، او همدي ته عمل صالح هم وایي.

الله عزّوَجَلّ مونږ ته په خپل کتاب قرآنکریم کښې بیان کړي دي چه مونږ یي د یو لوي او مهم هدف لپاره پیدا کړي یو، او هغه دا چه مونږ یوائې د هغه عبادت په داسې شان سره وکړو چه شریک او برخَوال ورسره ونه ګرزوو، لکه چه الله تعالی فرمایي: ﴿وَمَا خَلَقْتُ ٱلْجِنَّ وَٱلْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ۝٥٦﴾ [الذاریات: ٥٦].

ترجمه: «ما پیریان او انسانان نه دي پیدا کړي مګر ددې لپاره چه یوائې ځما عبادت او بندګي وکړي».

همدارنګه په بل ځاي کښې الله ﷻ فرمایي:

﴿وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ حُنَفَآءَ وَيُقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُواْ ٱلزَّكَوٰةَۚ وَذَٰلِكَ دِينُ ٱلۡقَيِّمَةِ ۝٥﴾ [البينة: ٥].

ترجمه: «دی خلکو ته امر نه دي شوې مګر خو امر شوې دوئ ته ددي خبری چه دوئ دی عبادت اوبندګي کوي یواځی د الله تعالی په داسی حال کښی چه خالص کونکي وي دوئ الله تعالی ته د عبادت خپل، او ولاړ وي په حق او مایل نه وي باطل خوا ته، او بل دوئ ته ددی امر شوې دې چه پوره په خپل وخت به أدا کوي د ټولو حقوقو سره لمونځ، او ورکوي به زکات، او همدا مضبوط دین دې».

نو هغه څوک چه له شرک ځینی ځان وساتي او خپل عبادت او بندګي یواځی یو الله تعالی ته خالص کړي، او هم د رسول اللهﷺ پیروي وکړي، نو دغه شخص مسلمان دې، له ده سره د الله تعالی لخوا د جنت ته دداخلیدو او له اور څخه د خلاصي وعده شوی ده.

او همداشان هغه څوک چه فرضي عبادات ادا کړي، او له محرماتو ځینی ځان ګوښه کړي، نو همدې د الله تعالی له هغه بندګانو څخه شمارل کیږي چه مؤمنان او متقیان ورته ویل کیږي، او ددوئ لپاره له عذاب څخه د امان وعده لیکل شوی ده، او هم په دنیا او آخرت کښی ورته د الله تعالی د لوئ مهربانۍ وعده ده.

خو هغه څوک چه د فرایضو د ادا او له محرماتو څخه د ګوښه کیدو تر څنګ مستحبات هم پرځاي کړي، او له مکروهاتو ځان هم وساتي، او د الله

تعالی عبادت او بندګي په داسې خشوع او خضوع سره وکړي لکه چه الله تعالی ورته ګوري نو دغه ډول بندګان د محسنينو بندګانو په شمار کښې راځي، د چا لپاره چه الله په جنت کښې د ډيرو لوړو درجو وعده کړې ده.

نو اوس به لوستونکي ته څرګنده شوي وي چه هغه څه چه د بنده په عبادت کښې کمې او نقصان راولي درې درجې لرې:

**لمړۍ درجه: شرك اكبر:** او هغه دا چه يو څوك د الله تعالی پرته د بل چا عبادت او بندګي وکړي، نو که يو څوك د عبادت له انواعو څخه هره يوه يي د الله تعالی څخه پرته بل چا ته وکړي نو هغه مشرك او كافر كيږي، الله عزّوَجَلّ ورڅخه فرضي او نفلي عبادتونه نه قبلوي، لکه هغه خلك چه بتان، اولياء، ونې، تيږې د خپل ضرورتونو او حاجتونو د پوره كولو لپاره رابلي، او د هغوئ لپاره حلالكې كوي، او خپل ضرورتونه پوره كول ورڅخه غواړي، او يا د كوم شر او مصيبت څخه بچ كول ورڅخه غواړي.

نو دغه ډول خلك كافر او مشركين دي، د اسلام له مقدس دين څخه بهر دي، او كه له دوئ څخه كوم يو پرته له توبې مړ شي، نو هغه به د جهنم په اور كښې تل ترتله وي. الله ﷻ دې مونږ ورڅخه وساتي.

**دوهمه درجه: کوچنۍ شرك (شرك اصغر):** لكه ريا، سمعت او په عبادت اوبندګۍ كښې ځان ښودنه، لكه چه يو بنده خپل كوم عبادت لكه لمونځ يا خيرات او داسې نور په ښه شان ادا كوي او ښايسته كوي يي؛ ددې

لپاره چه خلك يي په دغه كار باندي وستايي، نو كه څوك داسی كار كوي ښكاره ده چه دې په دغه عبادت کښی الله عزّوَجَلّ ته هغه اخلاص نلري چه له عذاب څخه پری خلاصیدې شي، اګر که ده دلته حقیقةً د غیر الله بندګي نه ده کړی، خو ده په دغه عبادت سره د خلکو او مخلوق ستایل او ثنا اراده کړی ده،ځکه ده ددغه عبادت ثواب له غیر الله څخه غوښتلې چه هغوئ يي وستايي، نو په دي سره دغه بنده د شرك اصغر(وړوکي شرك) مرتکب کیږي، چه همدغه عبادت بربادوي او له منځه يي وړي؛ ځکه رسول اللهﷺ په يو حديث قدسي شريف کښی فرمايي چه الله ﷻ فرمايلي دي:

«أنا أغنى الشُّرَكاءِ عَنِ الشِّركِ، مَنْ عَمِلَ عَمَلاً أَشْرَكَ فِيهِ مَعِيَ غَيرِيْ تَرَكْتُهُ وَشِرْكَهُ» [رواه مسلمٌ من حديثِ أبي هُريرةَ ؓ].

ترجمه: «په ټولو شريكانو او برخوالو کښی زه له خپلی برخی او شرك څخه ډير بی پروا يم، هر هغه چا چه يو عمل وکړ چه په هغی کښی يي له ما سره بل څوك شريك او برخمن کړ، نو زه دغه بنده او دغه د عمل خپله برخه دواړه پريږدم».

د شرك اصغر يو ډول دا هم دې چه دبنده زړه په دنيا پوری داسی ونښلي چه همدا دنيا يي لوي هدف او مقصد وګرزي، چه ددی دنيا په سبب ورڅخه ځينی فرضيات او واجبات پاتی کيږي او ضايع کيږي، او كله كله د محرماتو مرتکب کيږي، ځکه دده په زړه کښی ددنيا الوهيت او قداست دومره لوئ وي، چه له دي کبله ورڅخه ددنيا لپاره فرضيات اوواجبات پاتی

کیږي او د محرماتو مرتکب کیږي، حال دا چه رسول اللهﷺ فرمایي:

«تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَعَبْدُ الدِّرْهَمِ وَعَبْدُ الْخَمِيصَةِ إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ وَإِنْ لَمْ يُعْطَ سَخِطَ تَعِسَ وَانْتَكَسَ، وَإِذَا شِيْكَ فَلاَ انْتَقَشَ». [رواه البخاريُّ من حديثِ أبي هُريرةَ رضي الله عنه].

ترجمه: «هلاك او رانسکور دی شي،او بدبخته دی شي ددینار او اشرفیو بنده، او هم ددرهمو او نقری بنده، او د شړۍ بنده، که څه ورته ورکړ شي، نو خوشحاله شي، او که ورنکړ شي، نو خفه کیږي، نو بدبخته او ذلیل دی شي، او که ازغې یې په پښه کښې ننوځی نو تری وه دي نه ایستل شي».

او دا هم بددعایي او خیری دي چه رسول اللهﷺ یي ورته په بدبختۍ او هلاکت باندی ګوي، نو هغه څوك چه درسول اللهﷺ د خیرو مستحق شي کله به یي د مخی سمه شي، بلکه هرکله چه پاڅیږي نو بیرته راغورزیږي، او که په کوم مصیبت اخته شي نو له هغی څخه د وتلو لار ورته نه معلومیږي، او دا ټول لدي کبله چه ده خپل ځان د دنیا بنده کړې دې، او دنیا د الله ﷻ څخه غافل او بي پروا کړې دې.

دلته رسول اللهﷺ یوه مهمه قاعده او ضابطه بیان کړی ده، او هغه دا چه «که څه ورته ورکړ شي نو خوشحالیږي، خو که ورته ورنکړ شي بیا خفه کیږي» یعنی خوشحالي او خفګان یي یوائی په دنیایي ګټو پوری تړلی وي.

نو د چا چه ټول کوښښ او خواري د دنیا لپاره وي، او همدا یي معیار وي، که ورته دنیایي ګټی په لاس ورغلی، نو خوشحاله به وي، ګنی د

الله عزّوَجَلّ په قضا او فيصله باندي به په قهر وي او ورڅخه به بيزاره وي، او الله تعالی ته يي هم زړه پاک نه وي، نو دا خو د منافقينو صفت دې، لکه چه الله تعالی فرمايي:

﴿وَمِنۡهُم مَّن يَلۡمِزُكَ فِي ٱلصَّدَقَٰتِ فَإِنۡ أُعۡطُواْ مِنۡهَا رَضُواْ وَإِن لَّمۡ يُعۡطَوۡاْ مِنۡهَآ إِذَا هُمۡ يَسۡخَطُونَ ۝٥٨﴾ [التوبة: ٥٨].

ترجمه: «ځينی ددی منافقينو څخه هغه دي چه عيب او طعنی لګوي پر تا باندی په ويش د صدقاتو او خيراتو کښی، نو که له دغه صدقاتو څه شې ورته ورکړ شي، خوشحاليږي، او که ورنکړ شي بيا خفه او په غصه وي».

او ددوي خفګان او قهر او غصه د غير الله لپاره وي، چه هغه دنيايي ګټی دي.

او د چا چه دا حال وي نو هغه عبادت هم يواځی يو الله تعالی ته نه خاص کوي، بلکه د هغه په زړه کښی د غير الله الوهيت او عبوديت هم ننوتې وي.

او دا داسی کار دې چه نښی يي په هغه چا کښی ليدل کيږي چه زړه يي په مال، مشری، او يا هم په کوم معلوم معيّن شخص پوری تړلې وي، نو دومره محبت او مينه ورسره کوي چه د هغه له کبله د الله تعالی څخه په سرغړونه کښی هم واقع شي، نو دده په زړه کښی ددغه شخص محبوب غلامي وي چه د هغه زړه يي تړلې وي، او د هغه له کبله د الله تعالی سرغړونی ته هم تيار شي، او هغه څوک چه خپل زړه د الله تعالی پرته په بل

چا پورې وتړي نو الله تعالی به هم په هغه باندې عذاب ورکړي.

**دریمه درجه: ګناهونه کول:** او هغه داسې چه بنده ځینی حرامو شیانو ته لاس وراوږد کړي او یا هم په ځینی فرضیاتو کښې له سستۍ او لټۍ څخه کار واخلي، نو هرڅومره چه یو بنده د خپل پروردګار څخه سرغړونه کوي، په همدغه اندازه دې الله جل جلاله ته په خپله بندګۍ کښې نقصان او کمې راولي.

د الله ﷻ په بندګۍ کښې کاملترین او پوره بندګي کونکې هغه څوک دي چه د الله تعالی اوامر په ډیره ښه ډول سره ادا کوي، او د الله تعالی پر دین سم او ټینګ ولاړ وي، لکه چه الله عزّوَجَلّ فرمايي: ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ قَالُواْ رَبُّنَا ٱللَّهُ ثُمَّ ٱسۡتَقَٰمُواْ فَلَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ ۝١٣ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَنَّةِ خَٰلِدِينَ فِيهَا جَزَآءَۢ بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ۝١٤﴾ [الأحقاف:۱۳-۱٤].

ترجمه: «بیشکه هغه کسان چه ویلي یي دي: زمونږ پروردګار یواځې یو الله ﷻ دې، او بیا په دغه اقرار باندې ټینګ ولاړ دي، نو پر دوئ باندي ویره نشته له تیر وخته، او نه به دوي غمجن وي له راتلونکي عذاب څخه، همدغه ستایل شوي خلک د جنت خاوندان دي چه همیشه به وي په دغه جنت کښې، دا بدله ددوئ ده په سبب د هغه عمل چه دوئ به کولو».

همدارنګه په بل ځاي کښې الله تعالی فرمايي:

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ قَالُواْ رَبُّنَا ٱللَّهُ ثُمَّ ٱسۡتَقَٰمُواْ تَتَنَزَّلُ عَلَيۡهِمُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ أَلَّا تَخَافُواْ وَلَا تَحۡزَنُواْ وَأَبۡشِرُواْ بِٱلۡجَنَّةِ ٱلَّتِي كُنتُمۡ تُوعَدُونَ ۝٣٠ نَحۡنُ أَوۡلِيَآؤُكُمۡ

فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِۖ وَلَكُمۡ فِيهَا مَا تَشۡتَهِيٓ أَنفُسُكُمۡ وَلَكُمۡ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ ٣١ نُزُلٗا مِّنۡ غَفُورٖ رَّحِيمٖ ٣٢ وَمَنۡ أَحۡسَنُ قَوۡلٗا مِّمَّن دَعَآ إِلَى ٱللَّهِ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ ٱلۡمُسۡلِمِينَ ٣٣﴾ [فصلت: ۳۰-۳۳].

ترجمه: «بیشکه هغه کسان چه ویلي یي دي: زمونږ پروردګار یواځی یو الله ﷻ دې، او بیا په دغه اقرار باندی ټینګ ولاړ دي نو دوئ ته به ملایکی رازي او ورته به وایي چه: تاسو مه ویریږئ ددنیا په عمل، او مه غمجن کیږئ د آخرت د عذابونو له راتلو څخه، او بلکه تاسو خوشحاله شئ په هغه جنت چه له تاسو سره یي وعده شوی وه، مونږ ستاسو ملګري او دوستان یو په ژوند ددونیا کښی او په آخرت کښی، او شته ستاسو لپاره په آخرت کښی هغه نعمتونه چه ستاسو زړونه یي غواړي، او شته تاسو ته هغه نعمتونه چه تاسو یي غواړئ، دا نعمتونه میلمستیا ده ستاسو لپاره د الله تعالی لخوا چه بخښونکې او د مهربانۍ خاوند دې، او څوک ډیر ښایسته دې په وینا کښی له هغه چا څخه چه بلنه کوي د الله تعالی خوا ته او دهغه دین ته، او پخپله هم نیک عمل کوي، او په ژبه اقرار هم کوي چه زه له مسلمانانو څخه یم».

قلبي عبادتونه په درې اساسي بنسټونو باندی ولاړ دي: محبت، ویره، او امید، نو دا دریواړه عظیم الشان عبادتونه یو الله تعالی ته خاص کول پر بنده فرض دي.

او تر ټولو باید د الله تعالی سره ډیر محبت وکړي، او له هغه سره پدي محبت کښی هیڅ مخلوق شریک او برخمن نکړي، لکه چه الله تعالی

فرمايي:

﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَشَدُّ حُبًّا لِّلَّهِ﴾ [البقرة: ١٦٥].

ترجمه: «او هغه کسان چه مؤمنان دي هغوئ ډېر زيات محبت کونکي دي د الله تعالی سره».

او د الله تعالی له قهر او عذابه څخه به ويرېږي، تر څو د الله تعالی له ويرې له ګناهونو کولو څخه رابند شي.

او هم به د الله تعالی د رحمت، مغفرت، بخښنی فضل او احسان ډېر اميد کوي.

او هغه څوک چه په يو وخت کښې دا درېواړه سره يو ځاي په زړه کښې ساتي نو هغه د الله تعالی له رحمت څخه نه نااميده کيږي، او نه هم د الله تعالی له عذابه څخه په امن کښې کيږي، بلکه هغه په زړه کښې د الله د رحمت د اميد ترڅنګ د الله تعالی د عذاب ويره هم ساتي، لکه چه الله عزّوَجَلّ فرمايي: ﴿وَٱدۡعُوهُ خَوۡفًا وَطَمَعًاۚ إِنَّ رَحۡمَتَ ٱللَّهِ قَرِيبٞ مِّنَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ٥٦﴾ [الأعراف:٥٦].

ترجمه: «او وبلئ الله تعالی په داسې حال کښې چه تاسو د هغه له عذابه ويرېږئ، او هم د هغه درحمت او بخښنې طمع او اميد لرئ، بيشکه د الله عزّوَجَلّ رحمت نيکانو ته نژدې دې».

او دعا دلته دواړو نوعو ته شامله ده، که هغه عبادتي او ذکري دعا وي، او که يا هم دکوم حاجت د غوښتنې دعا وي.

په هر بنده کښې چه د الله تعالی سره مینه او محبت وي، نو دغه محبت او مینه يي دی ته اړ کوي چه الله عزّوَجَلّ ته د ځان نژدي کولو کوښښ وکړي، او د الله تعالی سره د ملاقات او د هغه ليدو ته يي شوق پيدا شي، بلکه د هغه په يادولو او ذکر باندی ورته سکون او آرام حاصليږي، او دغه محبت يي ديته اړباسي چه هغه څه خوښ کړي چه الله تعالی يي خوښوي، او هغه څه بد وګڼي چه الله تعالی يي بد ګڼي، او پدي شان سره د ولاء او براء عبادت په وجود کښې راځي؛ ځکه دده محبت د الله تعالی سره رښتينی دې.

همدارنګه د الله تعالی څخه ويره بنده لدي څخه ايساروي چه د محرماتو مرتکب شي، او يا هم فرايض پريږدي، او په همدي ډول دې د الله تعالی له متقينو بندګانو څخه شمار شي، هغه څوک چه د الله تعالی له ويری د هغه د قهر او عذاب له اسبابو څخه هم ځان ساتي.

او د الله تعالی د رحمت اميد بيا بنده کښې شوق پيدا کوي چه نيک عملونه وکړي؛ ځکه هغه اميد لري چه ددي په سبب به ورته لوئ لوئ ثوابونه او د الله تعالی د رضامندئ برکتونه په لاس ورشي، کوم چه الله تعالی خپلو نيکانو بندګانو ته ورکوي.

## اووم درس: د کفر بالطاغوت معنی

د یو الله تعالی د منلو او هغه ته د عبادت او بندګۍ د خاص کولو یوه غوښتنه دا ده چه د الله تعالی پرته د نورو معبودانو او طواغیتو له عبادت او بندګۍ څخه به انکار کوي، لکه چه الله تَعَالَی فرمايي:

﴿لَآ إِكۡرَاهَ فِي ٱلدِّينِۖ قَد تَّبَيَّنَ ٱلرُّشۡدُ مِنَ ٱلۡغَيِّۚ فَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤۡمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسۡتَمۡسَكَ بِٱلۡعُرۡوَةِ ٱلۡوُثۡقَىٰ لَا ٱنفِصَامَ لَهَاۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ٢٥٦﴾ [البقرة: ٢٥٦].

ترجمه: «نشته زور او په زورمنل په اسلامي دين کښې؛ ځکه واضح او ښکاره شوی ده سمه لار له کږې لارې څخه، که چا کفر او انکار وکړ له طاغوت څخه او ایمان یي راوړ په الله ﷻ باندي، نو ده منګولی ولګولی په کلکه او ټینګه کړۍ باندی چه نشته هغی لره شکیدل، او الله تعالی اوریدونکي دې ستاسو د ټولو اقوالو، پوهه دې په ټولو اعمالو او احوالو».

همدارنګه الله ﷻ فرمايي: ﴿وَلَقَدۡ بَعَثۡنَا فِي كُلِّ أُمَّةٖ رَّسُولًا أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱجۡتَنِبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ﴾ [النحل: ٣٦].

ترجمه: «او خامخا بیشکه مونږ لیږلي دي په هر امت کښې یو پیغمبر په دې خبره چه یواځې د یو الله ﷻ عبادت او بندګي وکړئ اود طواغیتو له

عبادت او بندګی څخه ځان وساتی».

همداشان په بل ځاي کښی فرمایي:

﴿وَٱلَّذِينَ ٱجۡتَنَبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ أَن يَعۡبُدُوهَا وَأَنَابُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰ﴾ [الزمر: ١٧].

ترجمه: «او هغه کسان چه ځان وساتي له عبادت او بندګی د طاغوت څخه، او راوګرزي په عبادت او بندګی کښی یواځی یو الله تعالی ته، نو د همدوئ لپاره زیرې دې (په جنتونو او ډول ډول نعمتونو)».

نو د توحید معنی همدا ده چه د الله تعالی پرته د نورو معبودانو له عبادت او بندګی څخه ځان وساتل شي، او یواځی د یو الله تعالی عبادت او بندګي وشي، بلکه یو بنده تر هغه مسلمان او موحد کیدې نشي ترڅو چه د الله تعالی پرته د نورومعبودانو په عبادت او بندګی باندی کفر او له هغی څخه انکار ونکړي.

او «طاغوت» دی ته وایي چه له الله تعالی پرته یي عبادت او بندګي کیږي، هر ډول عبادت او بندګي چه وي، که دعا او غوښتنه وي، یا ورڅخه مرسته او کومک غوښتل وي، یا اعتماد او بروسه کول وي، یا د هغه لپاره حلالکه کول وي، او که د هغه لپاره نذر او منښته منل وي، او یاهم په تحلیل او تحریم کښی د هغه پیروي او اتباع کول وي، او یا ورته دخلافونو دحل او فصل کولو لپاره فیصلی وروړل وي، او یا د الله تعالی له شریعت پرته په بل قانون باندي فیصله کولو باندي رضا او خوشحاله کیدل وي.

مشهور مفسّر ابن جریر طبري رحمه الله د «طاغوت» په تفسیر کښې فرمايي: «والصَّوابُ من القولِ عندِي في «الطَّاغُوتَ» أنه كُلُّ ذِي طُغْيانٍ على الله، فعُبِدَ من دونِه، إما بقَهْرٍ منه لَمن عَبَدَه، وإما بطَاعةٍ مِمَّن عبده له، وإنسانًا كان ذلك المَعْبودُ، أو شَيْطانًا، أو وَثَناً، أو صَنَمًا، أو كائِنًا ما كانَ من شيءٍ».

ترجمه: د «طاغوت» په تفسیر کښي زما په نظر صحیح خبره دا ده چه «طاغوت» هرهغه سر کښه او له الله تعالی څخه سرغړوونکي ته وايي چه د سر کشۍ سره سره يي د الله تعالی پرته عبادت او بندګي هم کیږي، که هغه په زور پر خلکو دا خپل عبادت او بندګي منلي وي، او که عابدینو په خوښه وي، او دغه معبود انسان وي که شیطان وي یا بُت وي، او یا بل کوم شې وي.

نو «طاغوت» هر هغه شې دې چه په سرکښۍ او سرغړونه کښې انتها ته رسیدلې وي، او خلك د الله تعالی له لاری بندوي، او په لویه بې لارۍ يي بې لارې کوي.

## داسې طواغیت چه د الله تعالی پرته یي بندګي کیږي

او داسې طواغیت چه د الله تعالی پرته یي بندګي کیږي ډیر ډولونه لري، خو د ټولو څخه ډیر سرکښه یي درې دي: شیطان، هغه بتان او معبودان چه د الله عزّوَجَلّ څخه پرته یي بندګي کیږي، او هغه مشران او حاکما چه د الله تعالی له رالیږلي شریعت څخه پرته په نورو قوانینو او نظامونو باندي فیصلی

کوي.

**لومړنی ډول طاغوت: شيطان:**

چه د هر ډول شرک او سرکښی اساس او بنیاد دې، بلکه د الله تعالی پرته چه د هرچا عبادت او بندګي کیږي نو هغه په اصل او حقیقت کښی د شیطان عبادت او بندګي ده؛ ځکه همدا شيطان يي سبب او دغه کار ته بلونکي دې، لکه چه الله ﷻ فرمايي: ﴿۞أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ أَن لَّا تَعْبُدُواْ ٱلشَّيْطَٰنَۖ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ۝٦٠ وَأَنِ ٱعْبُدُونِيۚ هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ۝٦١﴾ [يس: ٦٠-٦١].

ترجمه: «آیا وصیت او حکم می نه دې کړې تاسو ته أي بنیادمانو ! چه عبادت او بندګي به نه کوی د شيطان؛ بیشکه هغه ستاسو ښکاره دښمن دې، او زما بندګي وکړی همدا سمه لار ده».

همدارنګه الله عزّوَجَلّ فرمايي: ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِۦ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُۚ وَمَن يُشْرِكْ بِٱللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ۝١١٦ إِن يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ إِنَٰثًا وَإِن يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَٰنًا مَّرِيدًا ۝١١٧ لَّعَنَهُ ٱللَّهُۘ وَقَالَ لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ۝١١٨ وَلَأُضِلَّنَّهُمْ وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَأٓمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ ءَاذَانَ ٱلْأَنْعَٰمِ وَلَأٓمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ ٱللَّهِۚ وَمَن يَتَّخِذِ ٱلشَّيْطَٰنَ وَلِيًّا مِّن دُونِ ٱللَّهِ فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِينًا ۝١١٩ يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْۖ وَمَا يَعِدُهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا ۝١٢٠ أُوْلَٰٓئِكَ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا

يَجِدُونَ عَنْهَا مَحِيصًا ﴿١٢١﴾ [النساء: ١١٦-١٢١].

ترجمه: «بیشکه الله نه بخښي شرک له الله تعالی سره، او بخښنه کوي د هغه ګناهونو چه پرته له شرکه څخه وي هغه چاته چه د الله تعالی خوښه شي، او هغه چا چه شرک وکړ دالله تعالی سره نو یقیناً هغه ګمراه شو په ګمراهی لری سره له حق نه، دا مشرکان نه رابلي پرته له الله عزّوَجَلّ نه مګر خو رابلي ښځینه بتان، او نه رابلي مګر سرکښه شیطان، الله تعالی لعنتي کړې دې دغه شیطان، ویلي دي دي شیطان چه خامخا به ونیسم ستا له بندګانو څخه ځان ته یوه معینه معلومه برخه، او خامخا به ګمراه کړم دغه خپله برخه بنیادمان او ددي لپاره به امیدونه ورته ورکړم، او امر به ورته وکړم چه غوڅ کړي د چارپایانو غوږونه، او امر به ورته وکړم چه بدل کړي د الله تعالی پیدایښت، او هرڅوک چه شیطان په دوستۍ ونیسي، او د الله تعالی دوستي پریږدي، نو یقیناً تاواني شو په ښکاره تاوان سره، شیطان ورته وعدی ورکوي، او هم ورته امیدونه ورکوي، او شیطان وعده نه ورکوي مګر دغولونی او د فریب، نو همدغسی خلک چه د شیطان په دوکه او فریب کښی راشي ځاي دورتللو د هغوئ اور د جهنم دې چه وبه نه مومي له دغه جهنم څخه خلاصې».

ځکه خو الله تعالی هم د هغه چا سزا چه د الله تعالی له قرآن او یادونی څخه مخ اړوي نو سزا يي دا ده چه شیطان ورباند مسلط کړي، لکه چه فرمايي:

﴿وَمَن يَعۡشُ عَن ذِكۡرِ ٱلرَّحۡمَٰنِ نُقَيِّضۡ لَهُۥ شَيۡطَٰنٗا فَهُوَ لَهُۥ قَرِينٞ ٣٦ وَإِنَّهُمۡ لَيَصُدُّونَهُمۡ عَنِ ٱلسَّبِيلِ وَيَحۡسَبُونَ أَنَّهُم مُّهۡتَدُونَ ٣٧ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَنَا قَالَ يَٰلَيۡتَ بَيۡنِي وَبَيۡنَكَ بُعۡدَ ٱلۡمَشۡرِقَيۡنِ فَبِئۡسَ ٱلۡقَرِينُ ٣٨ وَلَن يَنفَعَكُمُ ٱلۡيَوۡمَ إِذ ظَّلَمۡتُمۡ أَنَّكُمۡ فِي ٱلۡعَذَابِ مُشۡتَرِكُونَ ٣٩﴾ [الزخرف:۳۶-۳۹].

ترجمه: «او هغه څوک چه سترګی پټی کړي او ځان ناخبره ونیسي د الله تعالی له یاد او قرآنکریم څخه نو ورپسی به کړو، او مسلّط به کړو په ده باندی شیطان، نو همدا شیطان به یې ملګرې وي، او بیشکه دوئ خامخا اړوي دوئ لره د لاری حقی څخه، او سره له دی ګومان هم کوي چه دوئ ګنی په سمه لار دي، تر دي چه کله راشي ځمونږ خواته دغه سرغړوونکې له قرآنکریم څخه، نو وایي به هغه خپل ملګري ته: هائ ارمان چه وی زما او ستا په منځ کښی لریوالې په اندازه د لریوالي د مشرق له مغرب څخه، نو ته ډیر بد ملګرې یې، او هیڅ ګټه به ونه رسوي تاسو ته نن ورځ، ځکه چه تاسو ظلم او شرک کړې دې، فایده به ونه رسوي دا خبره چه تاسو په عذاب کښی سره شریکان یاست».

نو ددغه ډول طاغوت څخه ځان ساتنه کله په دي کیږي چه په الله تعالی باندي ورڅخه پنا وغواړي او «أعوذ بالله من الشیطان الرجیم» ووایي، او د هغه له پلمو څخه ځان وساتي، او د شیطان په پلونو پسی ورپسی نشي؛ ځکه هغه ښکاره بي لاری کونکې دښمن دې، لکه چه الله تعالی فرمایي: ﴿كُتِبَ عَلَيۡهِ أَنَّهُۥ مَن تَوَلَّاهُ فَأَنَّهُۥ يُضِلُّهُۥ وَيَهۡدِيهِ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلسَّعِيرِ ٤﴾ [الحج: ٤].

ترجمه: «مقرر شوی دي ددی شیطان په حق چه بیشکه هرچا له دغه شیطان سره دوستي وکړه نو همدا شیطان به يي ګمراه کوي له سمی لاری ځخه، او لار ښوونه به ورته کوي ګرم اور ته».

د شیطان دوستي داده چه د هغه په پلونو پَل کیږدي، او د هغه د وعدو تصدیق وکړي، او د هغه وروړاندی کړی ارزوګانو ته امیدوار شي، او چه شیطان ورته کوم ګناهونه ښایسته کوي نو دا دوست يي کوي، او د الله تعالی له هدایت او لارښوونی ځخه سرغړونه کوي، او ځوك چه دغه کارونه کوی هغه د شیطان دوست دې.

شیطان د بنیادم سره په هر کار کښی ورسره وي، او ورپسی وي، لکه چه دا معنی د رسول اللهﷺ ځخه د جابر بن عبد الله رضي الله عنهما په حدیث شریف کښی ثابت دي کوم چه په صحیح مسلم شریف کښی دې.

نو د شیطان له شر او فتنی ځخه د خلاصی لپاره الله تعالی مونږ ته ښوونه کړی ده چه همیشه په الله عزّوَجَلّ باندی له شیطان ځخه پنا وغواړو، او په الله تعالی باندی خپل ایمان پوخ کړو، او توکل او اعتماد ورباندی وکړو، او خپل عبادت او بندګي الله تعالی ته خالصه کړو، او د الله تعالی یادونه او ذکر له یاده ونه باسو.

ځکه د ایمان کمزوري، د توکل او اخلاص کمزوري هغه اسباب دي چه شیطان پر انسان باندی مسلط کوي.

همداراز د شیطان لاری هغه هم دي چه د هغی له لاری پر انسان خپل

تسلط پلې کوي: لکه د ډېرې غصې او قهر وخت، د ډېرې خوشحالۍ وخت، په شهواتو کښې غرقیدل، له جماعت او ټولنې څخه ځانته کیدل، یوائیوالې په ځانګړې ډول په سفر کښې، او د خلکو تر منځ د خبرو ورو راوړو په وخت کښې، او همدارنګه سرې له پردۍ ښځې سره یوائې کیدلو وخت کښې، بد ګوماني، او د شک او تهمت ځایونو ته ورتلل.

ځکه خو د انسان د هر کار په پیل کښې بسم الله ویلو باندې رسول الله ﷺ امر کړې دې، تر څو چه یو خو په دغه کار کښې برکت وي، او بل د شیطان له پلمو څخه وساتل شي، نو بنده به د خوراک، څښاک، کور ته د ننوتلو په وخت، له کوره د وتلو په وخت، سبا، بیګا، او کله چه په سورلۍ سپریږي، یا له خپلې میرمنې سره کوروالې کوي، یا هم قضاء حاجت کوي او که ویده کیږي، نو په دې ټولو کښې باید «بسم الله» ووایي.

همدارنګه په صحیح مسلم شریف کښې د ابو سعید خدري رضي الله عنه په حدیث شریف کښې رسول الله ﷺ فرمایي:

«إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيُمْسِكْ بِيَدِهِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ».

ترجمه: «کله چه یو له تاسو څخه ارګمې کوئ نو تر خپل توانه دې خوله پخپل لاس بنده کړي؛ ځکه که خوله خلاصه او وازه پریږدي نو شیطان پکښې ننوځي».

د مسند احمد او مصنف عبد الرزاق په روایت کښې راغلي دي چه: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ،

فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلَى فِيهِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ مَعَ التَّثَاؤُبِ».

ترجمه: «کله چه یو له تاسو ارګمې کوي نو په خپله خوله باندي دي لاس کيږدي؛ ځکه شيطان د ارګمي په وخت کښې په خوله کښې ننوځي».

نو څوک چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ د لارښوونی پيروي ګوي هغه به د شيطان له پلمو څخه په امن او امان کښې وي، خو که څوک په دغه پيروئ کښې کوتاهي کوي نو د شيطان له پلمو څخه نشي بچ کيدې، او کيدې شي د شيطان له پلمو او ضرر او ګمراهۍ څخه ورته ډير ضرر ورسيږي.

## دوهم ډول طاغوت: هغه بتان او معبودان چه د الله تعالی پرته يي عبادت او بندګي کيږي.

او طواغيت هم څو ډوله دي:

– ځينی يي بتان او ځيري دي چه د يو چا په شکل باندي کښل شوي او کنستل شوی وي، يا د انسانانو په شکل او يا هم د ځينو حيواناتو په شکل، او يا په بل کوم شکل، بيا د ځينو مشرکانو عقيده دا وي چه دغه بتان ګنی يو چا ته ګټه او نقصان رسولې شي، او ځينی نور يي بيا دا عقيده نلري، خو داسی ګومان کوي چه دوئ د خپلو معتقدينو لپاره سفارښت کوي، نو له دي کبله هغوئ ته په حلالکو منښتو منلو او د خپلو ضرورتونو په غوښتلو هغوئ ته تقرب او نژديکت حاصلوي، الله جل جلاله فرمايي: ﴿قَالَ أَتَعۡبُدُونَ مَا تَنۡحِتُونَ ۝٩٥ وَٱللَّهُ خَلَقَكُمۡ وَمَا تَعۡمَلُونَ ۝٩٦﴾ [الصافات: ٩٥-٩٦].

ترجمه: «آیا تاسو بندګي کوئ د هغه بتانو چه تاسو يي پخپله تراشی، او پخپله مو کنستلي دي، او الله عزّوَجَلّ تاسو هم پیدا کړي یاست او هم یي ستاسو کښل شوي او کنستل شوي بتان پیدا کړې دې، یا هغه څه یي هم پیدا کړي دي چه تاسو یي کوئ».

همدارنګه په بل ځاي کښی الله عزّوَجَلّ فرمايي:

﴿وَٱتۡلُ عَلَيۡهِمۡ نَبَأَ إِبۡرَٰهِيمَ ۝٦٩ إِذۡ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوۡمِهِۦ مَا تَعۡبُدُونَ ۝٧٠ قَالُواْ نَعۡبُدُ أَصۡنَامٗا فَنَظَلُّ لَهَا عَٰكِفِينَ ۝٧١ قَالَ هَلۡ يَسۡمَعُونَكُمۡ إِذۡ تَدۡعُونَ ۝٧٢ أَوۡ يَنفَعُونَكُمۡ أَوۡ يَضُرُّونَ ۝٧٣ قَالُواْ بَلۡ وَجَدۡنَآ ءَابَآءَنَا كَذَٰلِكَ يَفۡعَلُونَ ۝٧٤ قَالَ أَفَرَءَيۡتُم مَّا كُنتُمۡ تَعۡبُدُونَ ۝٧٥ أَنتُمۡ وَءَابَآؤُكُمُ ٱلۡأَقۡدَمُونَ ۝٧٦ فَإِنَّهُمۡ عَدُوّٞ لِّيٓ إِلَّا رَبَّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٧٧ ٱلَّذِي خَلَقَنِي فَهُوَ يَهۡدِينِ ۝٧٨ وَٱلَّذِي هُوَ يُطۡعِمُنِي وَيَسۡقِينِ ۝٧٩ وَإِذَا مَرِضۡتُ فَهُوَ يَشۡفِينِ ۝٨٠ وَٱلَّذِي يُمِيتُنِي ثُمَّ يُحۡيِينِ ۝٨١ وَٱلَّذِيٓ أَطۡمَعُ أَن يَغۡفِرَ لِي خَطِيٓـَٔتِي يَوۡمَ ٱلدِّينِ ۝٨٢﴾[الشعراء: ٦٩-٨٢].

ترجمه: «او ولوله په دوئ باندی قیصه او احوال د ابراهیمؑ، کله چه یي خپل پلار او قوم ته وویل: تاسو د چا بندګي کوئ؟

هغوئ په ځواب کښی ورته وویل: مونږ د ځینو بتانو بندګي کوو، چه همیشه یو مونږ هغوئ ته عبادت او بندګي کونکي.

نو ابراهیمؑ ورته وویل: آیا دوئ ستاسو اواز اوري چه کله یي رابلئ او رامددشه ورته وايي؟ او یا درته څه ګټه او یا ضرر رسولې شي؟

هغوئ ورته وويل: (نه دا يو کار هم نشي کولې)خو مونږ خپل مشران دغسی ليدلي دي چه ددوئ عبادت او بندګي به يي کوله.

نو ابراهيمعليه السلام ورته وويل: آيا تاسو په دي پوهيږئ چه هغه څه چه تاسو يي عبادت او بندګي کوئ، تاسو او ستاسو پلرونو، نو دوئ زما دښمنان دي، پرته د پروردګار د عالميانو څخه، هغه رب چه زه يي پيدا کړې يم نو همغه به راته سمه لار هم وښايي، او هغه رب چه ما ته خوراك راکوي، او څښاك راکوي، او کله چه زه مريض او رنځور شم نو هغه راته شفا راکوي، او هغه رب چه ما مړ کوي او بيا مې بيرته ژوندې کوي، او هغه رب چه زه اميد لرم چه ما ته زما خطايي راوبخښي د قيامت په ورځ».

همداراز په بل ځاي کښی فرمايي:

﴿وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَآ إِبۡرَٰهِيمَ رُشۡدَهُۥ مِن قَبۡلُ وَكُنَّا بِهِۦ عَٰلِمِينَ ٥١ إِذۡ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوۡمِهِۦ مَا هَٰذِهِ ٱلتَّمَاثِيلُ ٱلَّتِيٓ أَنتُمۡ لَهَا عَٰكِفُونَ ٥٢ قَالُواْ وَجَدۡنَآ ءَابَآءَنَا لَهَا عَٰبِدِينَ ٥٣ قَالَ لَقَدۡ كُنتُمۡ أَنتُمۡ وَءَابَآؤُكُمۡ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ٥٤ قَالُوٓاْ أَجِئۡتَنَا بِٱلۡحَقِّ أَمۡ أَنتَ مِنَ ٱللَّٰعِبِينَ ٥٥ قَالَ بَل رَّبُّكُمۡ رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ٱلَّذِي فَطَرَهُنَّ وَأَنَا۠ عَلَىٰ ذَٰلِكُم مِّنَ ٱلشَّٰهِدِينَ ٥٦ وَتَٱللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصۡنَٰمَكُم بَعۡدَ أَن تُوَلُّواْ مُدۡبِرِينَ ٥٧﴾ [الأنبياء: ٥١-٥٧].

ترجمه: «او خامخا يقيناً ورکړې وو ابراهيمعليه السلام ته پوهه ددين او حقه نيکه لاره په عقايدو او اعمالو کښی پخوا له دي نه، او وو مونږ په ده باندي خبردار، کله چه يي وويل خپل پلار او قوم ته: څه دي دغه بتان چه تاسو يي

عبادت او بندګي کوئ، او په دي څه دليل دې؟

هغوئ ورته وويل: (دليل نشته خو) موندلي دي مونږ خپل پلرونه او مشران چه ددوئ عبادت او بندګي يي کوله.

نو ابراهيمعليه السلام ورته وويل: بيشکه خامخا تاسو او ستاسو مشران په ښکاره ګمراهۍ کښې ياست.

نو هغوئ ورته وويل: آيا ته رښتيا وايي که ټوقی مسخرى کوي؟

نو ابراهيمعليه السلام ورته وويل: بلکه رب ستاسو هغه څوک دې چه رب د اسمانونو او د ځمکې دې، هغه رب چه دغه ټول يي پيدا کړي دي، او زه په دغه خبره له ګواهانو څخه يم، او قسم په الله چه خامخا به څه چل تدبير جوړ کړم ستاسو بتانو ته وروسته له هغه چه تاسو وګرځئ شاکونکي دوئ ته.

او له معبودانو څخه ځينی يي هغه ونی او تيګی دي چه خلك يي تعظيم او تجليل کوي، او ځينی مشرکان په هغوئ کښې کفري عقيدي لري، لکه دا عقيده چه دغه ونی بوټي چا ته ګټه او نقصان رسولې شي، او يا د چا لپاره د اللهسبحانه وتعالى په وړاندي سفارښت کولې شي، چه څوك يي عبادت او بندګي وکړي او د عبادت په انواعو ورته ځان ورنژدي کړي».

په جاهليت کښې چه د کومو بتانو ونو او تيګو عبادت او بندګي کيدله هغه ډير دي، تردي چه يوائې د کعبې شريفې ګرد چاپير درى سوه شپيته بتان وو، بيا کله چه رسول اللهﷺ مکه مکرمه فتحه کړه هغه ټول يي مات کړل.

د عربو په ځینو کلیو کښې ډېرې ونې او تیګې وې چه خلکو به یې د الله تعالی پر ته د هغې عبادت او تعظیم کولو.

د باطلو معبودانو څخه ځینې یې قبرونه زیارتونه او درګاهونه دي چه د الله تعالی پرته یې عبادت او بندګي کیږي، نو ځینې ورڅخه طواف کوي، او څوک ورلره حلالکی کوي، او څوک ورته نذرونه منښتې او مالونه وړاندی کوي، او د ځینو بیا منجوران او خادمان وي چه خلك د الله تعالی له لارې بندوي، او پدغه ډول د خلکو مالونه په باطله طریقه خوري، او خلکو ته په یوه او بله طریقه او درواغو باندې ددغه قبرونو او د مړو څخه سوال، د ضرورتونو غوښتنې او د مصیبتونو ددفع لپاره ددوئ رابلنه ښایسته کوي، حال دا چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي:

«اللَّهُمَّ لَا تَجْعَلْ قَبْرِي وَثَنًا يُعْبَدُ» [رواه مالك].

ترجمه: «اې الله ځما له قبر څخه بت او باطل معبود مه جوړوه چه عبادت او بندګي یې کیږي».

بلکه رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده چه له قبرونو څخه مسجدونه جوړ شي؛ ددې لپاره چه خلك د قبرونو او مړو بندګی کښې اخته نشي.

د جندب بن عبد الله رضي الله عنه څخه روایت دې چه بیشکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي:

«إِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ كَانُوا يَتَّخِذُونَ قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ وَصَالِحِيهِمْ مَسَاجِدَ، أَلاَ فَلاَ تَتَّخِذُوا الْقُبُورَ مَسَاجِدَ، إِنِّي أَنْهَاكُمْ عَنْ ذَلِكَ». [رواه مسلم]

ترجمه: «بیشکه هغه څوک چه له تاسو څخه مخکښې وو- یعنی بنی اسراییل - نو هغوئ به د خپلو پیغمبرانو او نیکانو قبرونو څخه مسجدونه جوړول، نو خبردار ! چه تاسو له قبرونو څخه مسجدونه جوړ نکړئ، بیشکه زه تاسو له دغه کار څخه منع کوم».

او ابو عبیدة بن عامر بن الجرّاح ﷺ فرمایي: «كَانَ آخِرُ مَا تَكَلَّمَ بِهِ نَبِيُّ اللهِ ﷺ: أَنْ أَخْرِجُوا يَهُودَ الْحِجَازِ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ، وَاعْلَمُوا أَنَّ شِرَارَ النَّاسِ الَّذِينَ يَتَّخِذُونَ الْقُبُورَ مَسَاجِدَ». [مسند الإمام أحمد]

ترجمه: «د رسول الله ﷺ په ژوند کښې آخري خبری دا وی چه: د حجاز یهود د عربي جزیری څخه وباسئ، او ښه پوهه شئ چه بدترین له خلکو څخه هغه څوک دي چه له قبرونو څخه مسجدونه جوړوي».

د قبرونو څخه مسجدونه جوړولو معنی دا ده چه هلته لمونځونه وشي، او یا د هغی طرف ته لمونځ وشي، او یا وربانديي حقیقةً مسجد جوړ شي چه لمونځونه پکښې ادا کیږي، نو که څوک له دی دریو څخه هر یو کار وکړي هغه په دغه ګناه، منهي عنه او منع شوي کار کښې واقع شو.

د باطلو معبودانو له جملی څخه ځینی هغه شیان دي چه په هغه کښې د شرک او د غیر الله د عبادت او بندګۍ نښه او علامه وي، لکه په سنن ترمذي کښې چه د رسول الله ﷺ څخه روایت دې چه هغه د عدي بن حاتم ﷺ په غاړه کښې طلايي صلیب ولیده نو ورته یي وویل: «يَا عَدِيُّ اطْرَحْ عَنْكَ هَذَا الوَثَنَ»، «یعنی اي عدي ! دا بت دي له غاړی څخه لری کړه».

مقصد دا چه هر هغه شي چه د الله تعالی پرته یي بندګي کیږي نو هغه طاغوت دي، که هغه بت وی یا ونه وي، یا تیګه وي،یا قبر یا هم بل کوم شي وي.

ابو هریرهﷺ له رسول اللهﷺ څخه نقل کوي چه هغه فرمایلي دي: «يَجْمَعُ اللَّهُ النَّاسَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُولُ: مَنْ كَانَ يَعْبُدُ شَيْئًا فَلْيَتَّبِعْهُ، فَيَتْبَعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الشَّمْسَ الشَّمْسَ، وَيَتْبَعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الْقَمَرَ الْقَمَرَ، وَيَتْبَعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الطَّوَاغِيتَ الطَّوَاغِيتَ». [متفق علیه]

ترجمه: «د قیامت په ورځ به الله عزّوَجَلّ خلك راټول کړي بیا به ورته ووایي: هرچا چه د کوم شي عبادت کړې وي په هغه پسی دي ورپسی شي، نو چا چه د لمر عبادت کړې وي هغه به په لمر پسی لاړ شي، او چا چه د سپوږمۍ عبادت کړې وي هغه به په سپوږمۍ پسی لاړ شي، او هر چا چه د هر طاغوت عبادت کړې وي هغه به په همغه طاغوت پسی لاړ شي».

او دا ورپسی کیدل به د جهنم د اور طرف ته وي الله دي مونږ ټول تری وساتي، لکه چه الله ﷻ فرمایي:

﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا وَٰرِدُونَ ۝٩٨ لَوْ كَانَ هَٰٓؤُلَآءِ ءَالِهَةً مَّا وَرَدُوهَا ۖ وَكُلٌّ فِيهَا خَٰلِدُونَ ۝٩٩ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ ۝١٠٠﴾ [الأنبياء: ۹۸-۱۰۰].

ترجمه: «بیشکه تاسو او هغه څه چه تاسو یي د الله تعالی پرته عبادت او بندګي کوئ خس او خشاك د جهنم به یاست، تاسو به دغه جهنم ته

ننوتونکي یاست، که ستاسو دغه معبودان په حقه وې نو جهنم ته به نه وو ننوتلي، او تاسو ټول به په دغه جهنم کښې همیشه لپاره یاست، ددي جهنمیانو به هلته په جهنم کښې چغې سورى وي، او دوئ به په جهنم کښې هیڅ نه اوري».

نو دا آیتونه په دي دلالت کوي چه دغه باطل معبودان خپلو عابدانو ته هیڅ ډول ګټه نشي رسولاي، بلکه دغه معبودان او عابدان به یي ټول په قیامت کښې په اور کښې غورزول کیږي.

هو، هغه څوک چه د هغوئ عبادت او بندګي ځینی مشرکان کوي او هغه معبودان پرى رضا او خوشحاله نه دي، نو دوئ په دغه طاغوت کښې نه راځي، ځکه دوئ خو مشرکانو پخپله په الوهیت او خدایي نیولي دي او دغه باطله عقیده یي پکښې لرلی ده، حال دا چه هغوئ د دوئ له شرک او کفر څخه بیزاره دي، لکه چه الله عزّوَجَلّ فرمایي: ﴿ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَٰنَهُمۡ أَرۡبَابٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ وَٱلۡمَسِيحَ ٱبۡنَ مَرۡيَمَ وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعۡبُدُوٓاْ إِلَٰهٗا وَٰحِدٗاۖ لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۚ سُبۡحَٰنَهُۥ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ٣١﴾ [التوبة: ۳۱].

ترجمه: «دی اهل کتابو نیولي وو علماء او پیران خپل په الوهیت او خدایي سره پرته له الله تعالی څخه، او همدارنګه یي نیولې وو مسیح عليه السلام په الوهیت سره، حال دا چه دوئ ته امر نه وو شوې مګر ددی خبری چه دوئ دي عبادت او بندګي یواځی د یو الله تعالی وکړي؛ ځکه نشته لایق او مستحق د عبادت او بندګی مګر یواځی یو الله عزّوَجَلّ دې، پاک دې او پورته او لوي

دې الله تعالی له هغه شرک څخه چه دا مشرکان يي کوي».

همدارنګه په بل ځای کښی فرمایي: ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ سَبَقَتۡ لَهُم مِّنَّا ٱلۡحُسۡنَىٰٓ أُوْلَٰٓئِكَ عَنۡهَا مُبۡعَدُونَ ١٠١ لَا يَسۡمَعُونَ حَسِيسَهَاۖ وَهُمۡ فِي مَا ٱشۡتَهَتۡ أَنفُسُهُمۡ خَٰلِدُونَ ١٠٢ لَا يَحۡزُنُهُمُ ٱلۡفَزَعُ ٱلۡأَكۡبَرُ وَتَتَلَقَّىٰهُمُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ هَٰذَا يَوۡمُكُمُ ٱلَّذِي كُنتُمۡ تُوعَدُونَ ١٠٣﴾ [الأنبياء: ۱۰۱-۱۰۳].

ترجمه: «بیشکه هغه کسان - چه عبادت اوبندګي يي کیږي - او د هغوئ په حق کښی نیکه فیصله شوی ده د نیکی مرتبی سعادت او د جنت، نو دوئ له اور او جهنم څخه لری کړې شوي دي، نه به اوري کشار او اواز د اور او د جهنم، بلکه دوئ به په هغه نعمتونو کښی چه ددوئ زړونه يي غواړي همیشه لپاره وي، نه به غمجن کوي دوئ لره هغه لويه ویره او هیبت، او ورسره مخامخ کیږي به ملایکی او ورته به وايي: دا مو هغه ورځ ده چه تاسو سره يي وعده شوی وه».

همدارنګه هغه نیکان بندګان او اولیاء چه ځینی مشرکان يي په ظلم او درواغو عبادت او بندګي کوي، نو دغه نیکان ددوئ له عبادت او شرک څخه بیزاره دي.

خوهغه څوک چه د الله تعالی پرته د ځان په عباد باندي رضا شي، او یا دی کار ته خلک رابلي، نو شک نشته چه هغه د «طاغوت»په معنی کښی شامل دي، لکه فرعون چه خپل قوم ته ویلي وو:

﴿مَا عَلِمۡتُ لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرِي﴾ [القصص: ۳۸].

ترجمه: «زه تاسو لپاره د خپل ځان پرته بل معبود نه پيژنم».

## دريم ډول: هغه څوک چه دالله راليږلي وحي پرته په نورو قوانينو فيصلی کوي

هرهغه څوک چه په يوه منطقه کښی په خلکو مشر وي، او د هغوئ تر منځ په فيصلو کښی د الله تعالی له راليږل شوي شريعت څخه سرغړونه کوي، او د مخلوق لخوا په جوړ شوو قوانينو باندي پخپله خوښه د هغوئ ترمنځ فيصلی کوي، او د الله تعالی حرام کړي ورته حلالوي، او د الله تعالی حلال کړي ورته حراموي، نو دا هم يو ډول طاغوت دي، غواړي چه د الله تعالی پر ځاي دده عبادت او بندګي وشي.

او دلته دده عبادت او بندګي دا ده چه په تحليل او تحريم کښی دده پيروي وشي، لکه کله چه عدي بن حاتمﷺ له رسول اللهﷺ څخه دا آيت کريمه واوريده:

﴿ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَٰنَهُمۡ أَرۡبَابٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ﴾ [التوبة: ٣١].

ترجمه: «دی اهل کتابو خپل ملايان او پيران په الوهيت او خدايي نيولي دي پرته له الله عزّوَجَلّ څخه».

نو عديﷺ ورته وويل: مونږ خو د هغوئ عبادت نه کولو؟

رسول اللهﷺ ورته وويل: آيا داسی نه وو چه هغوئ به د الله تعالی لخوا حلال شوې شي تاسو ته حرامولو نو تاسو به د هغوئ په دغه تحريم کښی پيروي کوله، او د الله لخوا يو حرام شوې شی به يي درته حلالولو نو تاسو به

يي په تحليل کښې پيروي کوله؟

عديﷺ ورته وويل: هو همداسی وه.

نو رسول اللهﷺ ورته وويل: همدغه ددوئ عبادت دې.

او حذيفهﷺ فرمايي: «أَمَا إِنَّهُمْ لَمْ يُصَلُّوا لَهُمْ، وَلَكِنَّهُمْ كَانُوا مَا أَحَلُّوا لَهُمْ مِنْ حَرَامٍ اسْتَحَلُّوهُ، وَمَا حَرَّمُوا عَلَيْهِمْ مِنَ الْحَلاَلِ حَرَّمُوهُ، فَتِلْكَ رُبُوبِيَّتُهُمْ». [رواه سعيدُ بن مَنصورٍ في تفسيره].

ترجمه: «خبردار! چه اهل کتابو دغه ملايانو او پيرانو طرف ته لمونځونه نه کول، لکن دغه ملايانو او پيرانو چه به کوم حرام شي ته حلال ويل دوئ به هم حلال ګڼلو، او کوم حلال شي ته چه به يي حرام ويلو نو دوئ به هم هغه حرام ګڼلو، او هم دا يي ربوبيت او الوهيت وو».

**د طواغيتو له جملی څخه غيب ګويان، فالګر کف شناس، او ګوډګران هم دي،** څوک چه دا دعوه کوي چه په غيبو پوهيږي، او ځينی ناپوهان او ګمراهان هغوئ ته خپلی فيصلی وروړي، اللهﷻ فرمايي:

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُواْ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓاْ أَن يَكْفُرُواْ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴿٦٠﴾﴾ [النساء: ٦٠].

ترجمه: «آيا ته نه ګوری هغه کسانو ته چه ګومان کوي چه هغوئ هم ايمان لري په هغه کتاب چه تاته درنازل شوې دې(قرآنکريم) او هم په هغه

کتابونو چه له تا څخه مخکنيو پيغمبرانو ورليږل شوې وو، او بيا هم غواړي خپلی لانجی د حل او فصل لپاره و طاغوت ته يوسي، حال دا چه دوئ ته حکم شوې وو چه دوئ به انکار او کفر کوي په دغه طواغيتو باندي، خو شيطان غواړي چه دوئ له حق څخه په ډير لری ګمراهی سره ګمراه کړي».

او رسول اللهﷺ هم جادوګر فالګر او کوډګرو ته له ورتګ څخه منع فرمايلی ده، لکه چه د ابو هريرةﷺ په حديث کښی چه رسول اللهﷺ فرمايي: «مَنْ أَتَى كَاهِنًا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ، فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ -ﷺ-». [رواه الإمامُ أحمد من حديثِ أبي هُريرةَ﵁].

ترجمه: «هغه څوک چه غيبګو يا فالګر ته لاړ او د هغه خبره يي رښتيا وګڼله نو يقيناً هغه په هغه دين باندی کافر شو چه په محمدﷺ باندی نازل شوې دې».

او مشهور صحابي ابن مسعود﵁ فرمايي: «مَن أتى كاهِنًا أو سَاحِرًا فصَدَّقه بما يقولُ فقد كَفَرَ بما أُنْزِلَ على مُحَمَّدٍ». [رواه البَزَّارُ].

ترجمه: «هغه څوک چه غيبګو يا جادوګر ته لاړ او د هغه خبره يي رښتيا وګڼله نو يقيناً هغه په هغه دين باندی کافر شو چه په محمدﷺ باندی نازل شوې دې».

او د الله تعالی له حکم او شريعت څخه مخ اړونه او سرغړونه، او د هغی

په بدل کښې د طواغیتو قوانینو او فیصلو پسې ګرزیدل او ورپسې کیدل د منافقینو عمل او صفت دې لکه چه الله جل جلاله فرمایي:

﴿وَيَقُولُونَ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَبِٱلرَّسُولِ وَأَطَعْنَا ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُم مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَۚ وَمَآ أُوْلَٰٓئِكَ بِٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٧﴾ وَإِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٤٨﴾ وَإِن يَكُن لَّهُمُ ٱلْحَقُّ يَأْتُوٓاْ إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ ﴿٤٩﴾ أَفِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَمِ ٱرْتَابُوٓاْ أَمْ يَخَافُونَ أَن يَحِيفَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُۥۚ بَلْ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٥٠﴾ إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ ٱلْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَن يَقُولُواْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَاۚ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٥١﴾ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَخْشَ ٱللَّهَ وَيَتَّقْهِ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴿٥٢﴾﴾ [النور: ٤٧-٥٢].

ترجمه: «او وايي منافقان چه مونږ ايمان لرو په الله تعالی او په رسول الله ﷺ باندی، او غاړه اېښودونکي يو الله تعالی او د هغه رسول ﷺ ته، خو بيا هم مخ ګرزوي او سرغړونه کوي يوه ډله له دوئ څخه وروسته له دي اقرارونو هم، او په حقيقت کښې نه دي دوئ رښتيني مؤمنان، او کله چه راوبلل شي دوئ د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ شريعت ته ددی لپاره چه فيصله وکړي ددوئ ترمنځ، نو ناڅاپه يوه ډله له دوئ څخه سرغړونه کوي او د حق له منلو څخه مخ ګرزوي، خو که چيری وي په دي شريعت کښې

ددوئ حق او طرفي نو بیا راځي ددی شریعت خوا ته تابعدار او غاړه اېښودونکي، نو آیا ددوئ په زړونو کښې مرض د نفاق دې او که دوئ شکمن دي په عدالت د شریعت کښې، او که دوئ ویرېږي چه ظلم به وکړي په دوئ باندې الله تعالی او دهغه رسولﷺ، داسې نه ده بلکه همدوئ پخپله ظالمان دي چه له حق څخه سرغړونه کوي، بیشکه مؤمنان چه کله الله تعالی او د هغه رسولﷺ خوا ته وروبلل شي چه ددوئ تر منځ فیصله وکړي، نو دهغوئ وینا داسې وي چه ووايي: مونږ اوریدلې دې حکم د الله تعالی او غاړه اېښودونکي یو هغې ته، او همدغسې خلك همدوئ کامیاب دې، او هغه چا چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ پیروي وکړه، او د الله تعالی څخه ویرېږي، او د هغه له نافرمانۍ څخه ځان وساتي، نو همدغسې خلك همدوئ کامیاب دي».

خو هر څوك چه د طاغوت پیروي کوي، نو دغه پیروي یې نور هم د ګمراهی، تاوان او تورتمونو کندو ته غورزوي، او که څوك ددغه طاغوت څخه انکاري شی، او په الله تعالی باندې ایمان راوړي، او د الله د رالیږلې شوي لارښوونې پیروي یې وکړه، نو الله تعالی به یې له تیارو څخه رڼا ته راوباسي، او د سلامتیا او زرخیزۍ لارې به وروښایي، او په خپل رحمت او مهربانۍ کښې به یې داخل کړي، لکه چه الله ﷻ فرمایي:

﴿ٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يُخۡرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ أَوۡلِيَآؤُهُمُ ٱلطَّٰغُوتُ يُخۡرِجُونَهُم مِّنَ ٱلنُّورِ إِلَى ٱلظُّلُمَٰتِۗ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ٢٥٧﴾ [البقرة: ۲۵۷].

ترجمه: «الله تعالی د مؤمنانو دوست او کارسازې دي، چه ووباسي دوئ لره له تیارو څخه رڼا ته، او د کافرانو دوست طاغوت دي چه له رڼا څخه یي تیارو ته ووباسي، نو همدغسی خلک د اور والا دي او دوئ به په دغه اور کښی همیشه او تل لپاره وي».

نو طاغوت خپل دوستان د شرک، ناپوهی او ګمراهی، شکونو، حیرانتیا، تنګ ژوند او بدحالی او بدبختی کښی اچوي، الله تعالی دی مونږ تری بچ کړي.

خو هغه څوک چه په الله ﷻ باندی ایمان لري، نو همدا الله تعالی یي دوست او کارساز دي چه له تیارو څخه یي رڼا وخوا ته وباسي، نو د شرک له تیارو څخه یي د توحید رڼا ته، او د ګناه له خواری اوذلّت څخه یي د طاعت او دین پیروی عزت ته، او د بدعتونو له ګمراهی څخه د ځلانده سنتو لاری ته، او د شک له حیرانتیا څخه یي د یقین خوشحالی ته، او له تنګی او بدبختی څخه یي پراخی او نیکبختی ته، او له غم فکرونو او سوچونو څخه یي اطمینان، امن او آرامی ته ورروباسي.

بلکه هغه څوک چه د سمی لاری پیروان وي الله تعالی یي نور هم ورته دغه هدایت او روښانتیا ورزیاتوي، نو هره ورځ دوئ له خیر او هدایت څخه لا برخمن او بهرمن کیږي، چه درجی یي پورته کیږي، او نیکی یي څوچنده کیږي ﴿ذَٰلِكَ فَضۡلُ ٱللَّهِ يُؤۡتِيهِ مَن يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ ذُو ٱلۡفَضۡلِ ٱلۡعَظِيمِ ۝٤﴾ [الجمعة: ٤].

ترجمه: «او دا د الله تعالی مهرباني ده، او د هغه خوښه ده چه په چا باندی دغه ډول مهرباني کوي؛ ځکه الله تعالی د لوئ مهربانی خاوند دی».

## اتم درس: د شرک ډولونه او ورڅخه ویره کول

شرك هغه لویه ګناه ده چه الله ﷻ په ډاګه د هغې په هکله ډیر ټینګار کړې دې چه بنده ورڅخه ځان وژغوري، او کنه نو دغه ګناه په دنیا کښې له توبې پرته د بخښنې هیڅ لار نه لري، بلکه مشرك سړې که بې توبې مړ شي نو ابدي او تل ترتله په ددوزخ په اور کښې وي؛ له همدې کبله د قرآنکریم په متعددو آیاتونو کښې ورڅخه خپل بندګان ویرولي دي، او ورڅخه یي منع فرمایلې ده، لکه چه الله جلّ جلاله فرمایي:

﴿وَٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَلَا تُشۡرِكُواْ بِهِۦ شَيۡـٔٗاۖ﴾ [النساء: ٣٦].

«یعنې عبادت او بندګي وکړئ یواځې د الله تعالی، او د الله تعالی سره هیڅ شې شریك او برخمن مه منئ».

همدارنګه فرمایي:

﴿إِنَّ ٱلشِّرۡكَ لَظُلۡمٌ عَظِيمٞ ١٣﴾ [لقمان: ١٣].

ترجمه: «بیشکه شرك ډیر لوئ ظلم دې».

او په بل ځاي کښې فرمایي:

﴿إِنَّهُۥ مَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ ٱلۡجَنَّةَ وَمَأۡوَىٰهُ ٱلنَّارُۖ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنۡ أَنصَارٖ ٧٢﴾ [المائدة: ٧٢].

ترجمه: «بیشکه شان دادې چه هرچا شرک وکړ او برخمن یې ومنلو د الله تعالی سره، نو یقیناً حرام کړ الله تعالی پر ده باندې جنت، او ځای د بیرته ورتللو دده اور دې او نشته ظالمانو مشرکانو ته هیڅ مرسته کونکې».

همدا مقصود په بل ځای کښې الله داسې بیانوي:

﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ وَيَغۡفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُۚ وَمَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلَٰلَۢا بَعِيدًا ١١٦﴾ [النساء: ۱۱٦].

ترجمه: «بیشکه الله جلّ جلاله نه بخښي دا کار چه شریک وګڼل شي د الله تعالی سره، او بخښنه کوي د هغه ګناه چه راښکته وي له شرک څخه، او هغه چا چه شرک وکړ له الله تعالی سره نو یقیناً ګمراه شو په ګمراهۍ لرې سره له حق نه».

او ابن مسعودﷺ فرمایي: چه ما له رسول اللهﷺ څخه وپوښتل چه: کومه ګناه ډیره لویه ده؟ هغه راته وفرمایل:

«أَنْ تَجْعَلَ لِلَّهِ نِدًّا وَهْوَ خَلَقَكَ». [مسند الإمام أحمد].

ترجمه: «تر ټولو لویه ګناه دا ده چه ته د الله تعالی سره شریک او سیال ومنې، حال دا چه ته یواځې الله تعالی پیدا کړې یې».

او جابرِ بنِ عبدِ اللهﷺ فرمایي چه: رسول اللهﷺ فرمایي: «مَنْ لَقِيَ اللَّهَ لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ وَمَنْ لَقِيَهُ يُشْرِكُ بِهِ دَخَلَ النَّارِ». [رواه مسلمٌ].

ترجمه: «هر څوک چه د الله تعالی سره په داسې حال کښې مخ شي چه د الله تعالی سره یې هیڅ شې شریک او برخمن ګڼلې نه وي، نو په قیامت

کښی به جنت ته داخل شي، او که څوک ورسره په داسی حال کښی مخ شو چه د الله تعالی سره يي شريکوال منلې وي نو اور ته به داخل شي».

شرک دیته وايي چه د الله تعالی پرته د بل چا عبادت اوبندګي وشي، نو که څوک د الله تعالی ترڅنګ بل چا ته هم چغه ووهي او راوه يي بلي، که هغه دعاء العبادة وي او که دعاء المسألة وي نو داسی شخص مشرک ګڼل کيږي؛ ځکه هغه د الله تعالی سره د هغه په بندګۍ کښی شريکوال، برخمن او سيال منلې دې، او الله تعالی هيڅکله دا نه خوښوي چه له هغه سره دی په عبادت کښی څوک شريک او برخمن وي، نه پيغمبر او نه هم ملايک، او نه بل څوک؛ ځکه عبادت او بندګي يواځی د الله تعالی حق دې، لکه چه الله ﷻ فرمايي: ﴿إِنِ ٱلۡحُكۡمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعۡبُدُوٓاْ إِلَّآ إِيَّاهُ﴾ [يوسف: ٤٠].

ترجمه: «نه دې حکم او اختيار مګر يواځی يو الله تعالی ته دې، حکم يي کړې دې چه تاسو عبادت او بندګي مه کوئ مګر د يو الله تعالی عبادت او بندګي کوئ».

همدارنګه په بل ځاي کښی فرمايي: ﴿قُلۡ أَرَءَيۡتُمۡ شُرَكَآءَكُمُ ٱلَّذِينَ تَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَرُونِي مَاذَا خَلَقُواْ مِنَ ٱلۡأَرۡضِ﴾ [فاطر: ٤٠].

ترجمه: «ووايه اي پيغمبره! ګورئ، ما خبر کړئ ستاسو په هغه شريکانو او خدايانو چه تاسو يي د الله تعالی پرته رابلی، نو راوښيی چه دوئ په دی ټوله لويه ځمکه کوم شي پيدا کړې دې؟».

او همداراز فرمايي: ﴿وَمَن يَدۡعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ لَا بُرۡهَٰنَ لَهُۥ بِهِۦ

فَإِنَّمَا حِسَابُهُۥ عِندَ رَبِّهِۦٓۚ إِنَّهُۥ لَا يُفۡلِحُ ٱلۡكَٰفِرُونَ ١١٧﴾ [المؤمنون: ١١٧].

ترجمه: «او هغه څوک چه رابلي د الله تعالی سره بل معبود، چه نشته هيڅ دليل ددغه معبود په عبادت او بندګی باندي، نو دده حساب کتاب په الله تعالی باندی دې، بيشکه شان دا دې چه نه کاميابيږي کافران خلك».

نو هر څوک چه د الله تعالی پرته بل چا ته(په مافوق الأسباب امورو کښی) رامددشه وايي هغه مشرك دې.

او شرك په ټولو ګناهونو کښی لويه ګناه ده، چه په شرعي نصوصو کښی ورته اکبر الکبائر، او لوئ ظلم ويل شوې دې، بلکه شرك د الله تعالی سره د وعدی او لوظ ماتول دي، او په لوئ امانت او په ټولو حقوقو کښی په لوئ حق کښی خيانت کول دي، چه هغه د الله تعالی هغه حق دې چه د هغی له کبله يي دا ټول مخلوقات پيدا کړي دي، او هغه حق يواځی د يو الله تعالی عبادت او بندګي کول دي، نو دداسی لوئ ګناه سزا به هم د ټولو ګناهونو له سزاګانو څخه ډيره لويه وي.

نو په دنيا کښی د شرك سزا د الله تعالی قهر او غضب دې، لکه چه الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُنَادَوۡنَ لَمَقۡتُ ٱللَّهِ أَكۡبَرُ مِن مَّقۡتِكُمۡ أَنفُسَكُمۡ إِذۡ تُدۡعَوۡنَ إِلَى ٱلۡإِيمَٰنِ فَتَكۡفُرُونَ ١٠﴾ [المؤمن: ١٠].

ترجمه: «بيشکه هغه کسان چه کافران شي نو ورته اواز به کولې شي چه خامخا د الله تعالی قهر او غصه ډيره غټه ده ستاسو له قهر او غصی نه، نو ياد کړئ هغه وخت چه تاسو به ايمان طرف ته بلل کيدئ، نو تاسو به کفر او

انکار کولو».

او ددي ترڅنګ ورته په دنیا کښی ددوئ د نورو ګناهونو په سبب نوری سزاګانی هم رسیږي؛ ځکه دوئ د الله تعالی له لارښوونی څخه سرغړونه کړی وه.

او همدا ډول ورته ګمراهي بدبختي، ویره، غم، شك او حیرانتیا او په دنیوي ژوند کښی زړه تنګي وربانديي مسلّط کیږي، اګر که دوئ ته ددنیا یو څه سازو سامان هم ورکړل شي، بلکه دغه سازو سامان هم پر دوئ باندی یو ډول عذاب او وبال وي لکه چه الله تعالی فرمایي:

﴿لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِي ٱلۡبِلَٰدِ ١٩٦ مَتَٰعٞ قَلِيلٞ ثُمَّ مَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُۖ وَبِئۡسَ ٱلۡمِهَادُ ١٩٧﴾ [آل عمران: ١٩٦-١٩٧].

ترجمه: «دوکه دي نکړي او تیر دی نه باسي تالره ګرزیدل راګرزیدل د کافرو په ملکونو کښی، (دغه چه ورکړ شوي دي کافرو ته) سازوسامان ددنیا دې لږ غوندی، بیا ځاي د ورتلو ددوئ دوزخ دې، او ډیر بد ځاي او فرش دې دغه جهنم».

همداراز فرمایي: ﴿وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحۡزُنكَ كُفۡرُهُۥٓۚ إِلَيۡنَا مَرۡجِعُهُمۡ فَنُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ٢٣ نُمَتِّعُهُمۡ قَلِيلٗا ثُمَّ نَضۡطَرُّهُمۡ إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٖ ٢٤﴾ [لقمان: ٢٣-٢٤].

ترجمه: «او هغه څوک چه کافر شو نو غمجن دي نکړي تا لره- اي پیغمبره - کفر دهغه؛ بیرته راګرزیدل ددوئ زمونږ خوا ته دي، نو خبر به

کړو دوئ لره په هغه عملونو چه دوئ کړي وو، بیشکه الله تعالی په هغه پټو رازونو د سینو هم خبردار دي، سازوسامان ورکوو ورته په دنیا کښی لږ، او بیا به یي مجبور کړو ننوتلو د عذاب سخت ته».

همدارنګه الله تعالی فرمایي: ﴿وَمَن كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُۥ قَلِيلٗا ثُمَّ أَضۡطَرُّهُۥٓ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلنَّارِۖ وَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ ١٢٦﴾ [البقرة: ١٢٦].

ترجمه: «او هغه څوک چه کافر شو نو نفع او سازوسامان به ورکړم ورته لږ غوندی، بیا به یي مجبور کړم د اور عذاب ته، او ډیر بد ځاي د ورتللو دې».

او له مرګه وروسته خو د روح له وتلو پسی سمدلاسه ددوئ لپاره سخت او پرله پسی عذاب شروع شي؛ ځکه ددی نه مخکښی دوئ الله تعالی لعنتیان کړي وي.

نو اول خو به په ډیری سختۍ سره د روح په ویستلو کښی په سخت عذاب باندي په عذاب کړل شي، بیا چه کله د قیامت د قایمیدو وخت شي، نو په هغه لویه ویره باندی عذاب کړل شي، بیا د عذب د ملایکو په لیدلو د عذاب بل پړاو وي، همدارنګه په قبرونو کښی هم د سخت عذاب سره مخ کیږي، او د قیامت په ورځ چه کومی ویری او ترهی دي هم په دوئ باندی تیریږي.

بیا چه کله د قیامت په ورځ د عرصات په میدان کښی په هغه غټه ورځ د رانژدي شوي لمر د سوزوونکو وړانګو لاندي هغه اوږده ولاړه هم یو عذاب

دې چه پنځوس زره کاله اوږده ورځ کښې پکښې ودریږي، او په آخر کښې د دوزخ اور ته ورتلل دي چه تل ترتله به پکښې پاتې کیږي، چه نه ورځخه عذاب سپکیږي، او نه به ورځخه وویستل شي.

لکه چه الله ﷻ فرمایي: ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَمَاتُواْ وَهُمْ كُفَّارٌ أُوْلَٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ لَعۡنَةُ ٱللَّهِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ وَٱلنَّاسِ أَجۡمَعِينَ ١٦١ خَٰلِدِينَ فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنۡهُمُ ٱلۡعَذَابُ وَلَا هُمۡ يُنظَرُونَ ١٦٢﴾[البقرة: ۱۶۱-۱۶۲].

ترجمه: «بیشکه هغه کسان چه کافران شوي دي او په داسې حال کښې مړه شي چه دوئ کافران وي، نو داسې کسان پر دوئ باندې به وي لعنت د الله تعالی او د ملایکو او د ټولو خلکو، همیشه به وي په دغه لعنت کښې، چه نه به سپکولې شي له دوئ ځخه عذاب، او نه به ورته مهلت ورکولې شي».

همدارنګه فرمایي: ﴿وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَهُمۡ نَارُ جَهَنَّمَ لَا يُقۡضَىٰ عَلَيۡهِمۡ فَيَمُوتُواْ وَلَا يُخَفَّفُ عَنۡهُم مِّنۡ عَذَابِهَاۚ كَذَٰلِكَ نَجۡزِي كُلَّ كَفُورٖ ٣٦ وَهُمۡ يَصۡطَرِخُونَ فِيهَا رَبَّنَآ أَخۡرِجۡنَا نَعۡمَلۡ صَٰلِحًا غَيۡرَ ٱلَّذِي كُنَّا نَعۡمَلُۚ أَوَ لَمۡ نُعَمِّرۡكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ ٱلنَّذِيرُۖ فَذُوقُواْ فَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ٣٧﴾ [فاطر: ۳۶-۳۷].

ترجمه: «هغه کسان چه کافران وي ددوئ لپاره اور د دوزخ دې، نه به وباندې د مرګ فیصله کیږي چه مړه شي، او نه به ورځخه د دوزخ عذاب سپکولې شي، همدا شان سزا ورکوو هر کافر ته، او دوئ به چیغې وهي په دغه اور کښې او وایي به: اې ربه ! مونږ له دې اوره ځخه بهر وباسه چه نیک

عمل وکړو، پرته له هغه عمل نه چه مخکښې مو کړي وو، نو ورته به وويل شي: آيا مونږ نه وو درکړې تاسو ته دومره عمر چه څوک پکښې پند اخلي نو اخستلې يي شي؟ او هم راغلې وو تاسو ته له دې عذاب څخه ويروونکې، نو اوس وڅکی عذاب؛ ځکه نشته د ظالمانو لپاره هيڅوک کومکي».

همداراز فرمايي: ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَعَنَ ٱلۡكَٰفِرِينَ وَأَعَدَّ لَهُمۡ سَعِيرًا ٦٤ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدٗاۖ لَّا يَجِدُونَ وَلِيّٗا وَلَا نَصِيرٗا ٦٥ يَوۡمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمۡ فِي ٱلنَّارِ يَقُولُونَ يَٰلَيۡتَنَآ أَطَعۡنَا ٱللَّهَ وَأَطَعۡنَا ٱلرَّسُولَا۠ ٦٦ وَقَالُواْ رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعۡنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّونَا ٱلسَّبِيلَا۠ ٦٧ رَبَّنَآ ءَاتِهِمۡ ضِعۡفَيۡنِ مِنَ ٱلۡعَذَابِ وَٱلۡعَنۡهُمۡ لَعۡنٗا كَبِيرٗا ٦٨﴾ [الأحزاب: ٦٤-٦٨].

ترجمه: «بيشکه الله تعالی لعنتيان کړي دي کافران او تيار کړي يي دې هغوئ ته ګرم اور، هميشه به وي دوئ په دغه اور کښې تل ترتله، نه به مومي ځان لپاره هيڅوک دوست کارساز او نه مرسته کونکې، په هغه ورځ چه اړول کيږي را اړول کيږي به مخونه ددوئ په اور کښې او دوئ به وايي: اي افسوس دې مونږ ته چه پيروي مو کړې واي د الله تعالی او د هغه د رسول (صلّی اللهُ عَليه وسلّم)، او هم به وايي: اي ربه زمونږ ! بيشکه مونږ پيروي کړې وه د خپلو سردارانو او مشرانو، نو هغوئ مونږ د سمې لارې څخه بې لارې کړو، نو اي ربه زمونږ ! ورکړه هغوئ ته دوچند عذاب، او لعنتيان کړه هغوئ په ډير لوئ لعنت سره».

او د شرک د لوئ خطر او له هغې څخه د ځان ساتلو د وجوب يو دليل

دادي چه هر څوک شرک وکړي، نو مخکنې نيک عمل يې تباه او ابته کيږي، او شخص په کافرانو او تاوانيانو کښې شامليږي، ګويا چه ده مخکښې هيڅ نيک عمل کړې نه وي؛ ځکه الله ﷻ له مشرک څخه هيڅ يو عمل نه قبلوي.

لکه چه الله تعالى فرمايي: ﴿وَمَن يَبۡتَغِ غَيۡرَ ٱلۡإِسۡلَٰمِ دِينٗا فَلَن يُقۡبَلَ مِنۡهُ وَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ٨٥﴾ [آل‌عمران: ۸۵].

ترجمه: «او هغه څوک چه لټوي پرته له اسلام څخه بل دين نو هيڅکله به ورڅخه قبول نشي، او ورڅخه به ونه منل شي، او دې به په آخرت کښې له تاوانيانو څخه وي».

همداراز فرمايي: ﴿وَلَقَدۡ أُوحِيَ إِلَيۡكَ وَإِلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكَ لَئِنۡ أَشۡرَكۡتَ لَيَحۡبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ٦٥ بَلِ ٱللَّهَ فَٱعۡبُدۡ وَكُن مِّنَ ٱلشَّٰكِرِينَ ٦٦﴾ [الزمر: ٦٥-٦٦].

ترجمه: «او خامخا په تحقيق وحى شوى ده تا ته او هغه پيغمبرانو ته چه له تاڅخه مخکښې ليږل شوي دي په دي خبره چه که ته هم -فرض محال- شرک وکړي نو ابته او تباه به شي ستا نيک عمل هم، او خامخا به له تاوانيانو څخه شى، بلکه ته عبادت او بندګي کوه يوائې د يو الله تعالى، او د شاکرينو له جملى څخه شه».

همداشان الله تعالى د يو شمير پيغمبرانو يادونه په سورت انعام کښې کړې ده او په هغوئ يې ثنا ويلى ده، او بيا يې فرمايلي دي: ﴿وَمِنۡ ءَابَآئِهِمۡ

وَذُرِّيَّٰتِهِمۡ وَإِخۡوَٰنِهِمۡۖ وَٱجۡتَبَيۡنَٰهُمۡ وَهَدَيۡنَٰهُمۡ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ٨٧ ذَٰلِكَ هُدَى ٱللَّهِ يَهۡدِي بِهِۦ مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦۚ وَلَوۡ أَشۡرَكُواْ لَحَبِطَ عَنۡهُم مَّا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ٨٨﴾ [الأنعام: ۸۷-۸۸].

ترجمه: «او هم ددوئ له پلرونو اولادونو او وروڼو څخه ځيني هغه دي چه مونږ غوره کړي دي، او ورته ښوولی مو ده سمه لاره، همدا زمونږ لخوا ښوول شوی سمه لاره د الله ﷻ هغه هدايت او لارښوونه ده چه الله تعالی يي پخپله خوښه هغه چا ته ښاي چه ورته خوښه يي شي له خپلو بندګانو څخه، خو که بالفرض دوئ هم شرک وکړي نو ددوئ هغه نيک عمل به تباه او ابته شي چه دوئ کړې وو».

نو انبياء عليهم السلام سره له دي چه د الله تعالی ډير نيکان بندګان دي، او د الله تعالی سره د لويو مرتبو، شرافت او نژديکت خاوندان دي، او الله جلّ جلاله ورسره محبت او مينه هم لري، خو بالفرض که دوئ هم شرک وکړي نو الله تعالی يي ورته نه بخښي، خو مونږ ټول په دي ښه پوهيږو چه هغوئ الله تعالی له شرک څخه معصوم کړي او ورڅخه ساتلي يي دي.

نو کله چه انبياؤ ته شرک - که بالفرض ورڅخه صادر شي - نه بخښل کيږي، نو نورو ته خو په طريقه اولی نه بخښل کيږي، او دا هغه حکم دې چه الله تعالی په خپل کتاب کښی تل ترتله پريښې دې، چه هميشه لوستل کيږي ترڅو مونږ پکښی سوچ فکر وکړ، و او ورڅخه پوهه شو چه شرک څومره لوئ جرم دې.

## شرك په دوه ډوله دي:

### لومړي: شرك اكبر «لوئ شرك»:

او دا ډول شرك په ربوبيت او الوهيت كښې راتلاي شي.

شرك أكبر په ربوبيت كښې دا دې چه: د الله تعالى سره د هغه په كارونو كښې شريكوال او برخمن وګڼل شي، لكه پيدا كول، رزق وركول، او د ټول عالم په ټولو اړخونو كښې پاچاهي اختيار او د هغې تدبير كول.

او شرك أكبر په الوهيت اوعبادت كښې دا دې چه د الله تعالى پرته بل څوك راوبلل شي، كه هغه د عبادت او بندګۍ په ډول وي او كه د حاجت غوښتنې په څير وي، او شرك اكبر كله په زړه سره وي، كله په وينا كښې او كله په عمل سره.

د قلبي شرك اكبر مثال: لكه چه يو څوك دا عقيده ولري چه د الله پرته نور معبودان په دي كون كښې تصرف كولې شي، يا په غيبو باندي پوهيږي، او يا هم مافوق الأسباب ګټه او تاوان رسولې شي، او ددغه معبودانو سره محبت او مينه كول، او په هغوئ باندي توكل بروسه او اعتماد كول، له هغوئ څخه مرسته او كومك غوښتل او داسې نور هغه قلبي عبادتونه دي چه له الله تعالى پرته بل چا ته كول يي روا نه دي، نو كه څوك دغه كار وكړي هغه مشرك او كافر ګڼل كيږي.

او په قول او وينا كښې د شرك مثال: لكه د الله تعالى پرته بل څوك رابلل، ورته چغه وهل، او همدا ډول هغه كفري اقوال چه په هغې كښې د بتانو او طواغيتو لويي، تعظيم او مدح او ثنا صفت وي، او يا پكښې پر الله

تعالی باندي دروغ تړل وي.

او د عملي شرک مثال: لکه د الله تعالی پرته د بل چا په نامه او یا هغه ته د قربت او نژدیکت لپاره حلالکه کول، هغه ته نذر او منښته منل او ورته سجده کول.

**د شرک اکبر حکم:**

شرک اکبر باندي بنده د اسلام له مقدس دین څخه ووځي، او هغه څوک چه شرک اکبر وکړي او بیا له دغه شرک اکبر څخه توبه ونه باسي او مړ شي، نو الله تعالی ورته هیڅکله بخښنه نکوي، بلکه دغه شرک اکبر د الله تعالی د غضب غصی او ددوزخ په اور کښی د تل ترتله پاتی کیدو سبب کیږي. العیاذ بالله.

**دوهم: شرک اصغر «وړوکې شرک»:**

شرک اصغر هغه ګناه ده چه شرک اکبر ته وسیله او سبب کیږي، او شرک اکبر ته یو ډول لار وي، او په شرعي نصوص کښی په شرک سره نومول شوې وي، او عین وخت کښی پکښی د الله تعالی پرته بل چا ته پکښی د عبادت کول نه وي.

او دا شرک اصغر هم کله په زړه، کله په وینا کښی، او کله په عمل کښی وي.

په زړه د شرک اصغر مثال: د یو مقصود او هدف لپاره د هغه څه سبب ګڼل چه الله تعالی هغه په شریعت او یا تقدیر کښی سبب کړې نه وي، لکه د بندونو او تعویذونو د ګټې رسولو عقیده ساتل چه دا به د کوم مصیبت

مخه نیسي، او یا بدفالي کول.

دعملي شرک اصغر مثال: لکه ریا کول، لکه چه یو څوک د یو چا په مخکښی لمونځ په ډیر ښه ډول ادا کوي ترڅو خلک یي صفت او مدح وکړي او وه یي ستایي، او ورځخه ښه ووایی، چه ډیر ښه عبادت او بندګي کوي، نو دلته دا لمونځ کونکې لمونځ د الله تعالی لپاره کوي، خو دې په دغه ښه لمانځه د خلکو مدح او صفت هم غواړي، او په نیت کښی یي دغه مقصد راوستلې دې، او کیداي شي نور یي په ښه ډول ادا کړي؛ ترڅو خلک یي ډیر صفت وکړي.

نو دا کار شرک اصغر دې؛ ځکه په دغه عبادت کښی دده قصد خالص د الله تعالی رضا نه وه، خو شرک اکبر هم نه دې؛ ځکه دلته ده د الله تعالی پرته د بل چا عبادت او بندګي نه ده کړی.

او په قول او وینا کښی د شرک اصغر مثال: لکه چه یو څوک چا ته ووایي: ستا او د الله خوښه ده، یا د الله تعالی پرته په بل چا باندي قسم او سوګند وخوري، او یا ووایي: دا باران پر مونږ د پلاني پلاني ستوري په سبب وشو.

**د شرک اصغر حکم:** په شرک اصغر سره بنده له اسلام څخه نه ووځي، او نه یي په سبب په اور کښی تل ترتله پاتی کیږي، خو بیا هم لویه ګناه ده، که له کوم بنده څخه دغه کارونه صادر شي باید توبه ورځخه وکاږي، که توبه ورځخه ونکړي، نو خپل ځان یي د الله تعالی غضب غصی او دردناک عذاب ته وړاندی کړ.

### د شرک یو بل تقسیم:

شرک په یو بل تقسیم کښې هم په دوه ډوله دې:

### لومړې: شرک جلّي:

او دا هغه شرک دې چه شرکیت یې ښکاره وي: لکه د غیرُ الله رابلل، د بتانو او طواغیتو لپاره حلالکه کول، او داسې نور د شرک اقوال او افعال، چه په ښکاره ډول شرک ګڼل کیږي.

### دوهم ډول: شرک خفي:

او شرک خفي کله شرک اکبر وي او کله به اصغر وي.

نو شرک اکبر خفي: لکه د شرک اکبر پټ اعمال، لکه په غیرُ الله پورې د زړه تړل، په مافوق الاسباب امورو کښې غیر الله ته پنا وړل، د الله تعالی پرته په بل چا باندې توکل او بروسه او اعتماد کول، او له هغې څخه د ګټې او تاوان عقیده ساتل.

او شرک اصغر خفي: لکه په دنیا پورې داسې زړه تړل چه کله یې پر واجبو او فرضي اعمالو باندي بهتره وګڼې، او یا ددې دنیایې ګټو له کبله د ځینو محرّماتو مرتکب شي، حال دا چه رسول اللهﷺ فرمایي: «تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَعَبْدُ الدِّرْهَمِ»، یعنې: «ورک دې شي او برباد دې شي د دینار او درهم بنده».

نو دلته په دې حدیث شریف کښې رسول اللهﷺ په مال پورې زړه تړل یې د هغې په عبادت او بندګۍ باندې ونومولو.

او دا هم شرک خفي دې چه د غیر الله پیروي او اطاعت د الله تعالی په

پیروۍ او اطاعت باندي مخکښی کړي، سره له دي چه دلته دده قصد دا نه وي چه د غیر الله عبادت او بندګي وکړي، او یا خپل زړه په هغه پوری وتړي، او دا بیا د شرک خفي هغه ډیر باریک ډول دې، چه بچ کیدل ورځخه ډیر ګران دي.

لکه چه معقل بن یسارﷺ فرمایي: زه له ابوبکر الصدیقﷺ سره د رسول اللهﷺ خوا ته لاړم، نو رسول اللهﷺ وفرمایل: «لَلشِّرْكُ فِيكُمْ أَخْفَى مِنْ دَبِيبِ النَّمْلِ»، یعنی شرک په تاسو کښی- یعنی په دي امت کښی- د میږیانو د تللو له اواز ځخه هم ډیر پټ دي.

نو ابوبکرﷺ ورته وفرمایل: آیا شرک دیته نه وایي چه څوک د الله تعالی سره بل معبود ومني؟.

نو رسول اللهﷺ ورته وفرمایل:

«وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَلشِّرْكُ أَخْفَى مِنْ دَبِيبِ النَّمْلِ، أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى شَيْءٍ إِذَا قُلْتَهُ ذَهَبَ عَنْكَ قَلِيلُهُ وَكَثِيرُهُ؟. قُلِ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أُشْرِكَ بِكَ وَأَنَا أَعْلَمُ، وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا لَا أَعْلَمُ». [رواه البخاري في الأدب المفرد].

ترجمه: زما دي په هغه الله تعالی سوګند وي چه زما نفس د هغه په لاس کښی دې، چه خامخا شرک د میږیانو د تللو له کشار ځخه هم په تاسو کښی ډیر پټ دې، نو آیا تاته داسی یو څه ونه ښایم چه ته یي ووایي نو له تا ځخه د هغه شرک لږ او ډیر ټول لاړ شي او ته ورځخه پاک شی؟ هغه ورته وویل: راته یي ووایه: نو رسول اللهﷺ ورته وفرمایل: دا دعا وایه: چه أي الله زه له تا ځخه له دی نه پناه غواړم چه زه له تاسره شرک وکړم او زه پری پوهیږم، او

هم له تا څخه بخښنه غواړم د هغه ګناه چه زه پری نه پوهیږم.

نو له شرک خفي څخه بچ کیدل ډیر ګران دي مګر که الله تعالی څوک تری وساتي او تری بچ یي کړي؛ ځکه کله دغه شرک خفي پدی شکل هم وي چه خپل نفساني خواهش د الله تعالی پر اطاعت او پیروئ باندی مخکی کړی، یا د ځینو بندګانو د اطاعت له کبله د الله تعالی څخه سرغړونه وکړي، او دا سرغړونه کله په کبائرو کښی وي او کله په صغائرو کښی وي.

نو دا نبوي دعا له دغه ډول شرک څخه د خلاصی لپاره ډیر لوئ سبب دي، چه ددغه ډول شرک اثر هم له منځه وړي، او د الله تعالی مغفرت او بخښنه پری لاس ته راځي.

او د توحید پوره تحقیق او پلي کول په دي سره لاس ته راځي چه بنده خپل زړه او مخ یو الله تعالی ته تسلیم کړي، یعنی په ښکاره او باطن کښی الله تعالی ته غاړه کیږدي، نو د هغه پیروي ، محبت کول، د یو چا سره کینه کول، ورکړه کول، یو څه منع کول ټول د الله تعالی د رضا لپاره وي، نو په دي سره بنده د کامل ایمان خاوند کیداي شي، الله تعالی دي زمونږ په دغه کامل ایمان کښی برخه وکړي.

## نهم درس: له منافقت څخه ویره

منافقت دیته وایي چه د بنده ښکاره او ظاهر له زړه او باطن څخه مخالف او بل شان وي، او منافقت بیا په دوه ډوله دې: یو یي نفاق اکبر«یعنی لوئ منافقت» چه بنده له اسلام څخه ووباسي، او بل یي نفاق اصغر «کوچنی منافقت» چه بنده له اسلام څخه نه ووباسي، او همدی ته عملي نفاق هم ویل کیږي.

**لومړې: نفاق اکبر«لوئ منافقت»:**

او هغه دا چه څوک په ښکاره د اسلام اقرار کوي، او په زړه کښی کافر او له ایمان او اسلام له منلو څخه منکر وي.

**دوهم: نفاق اصغر «کوچنی منافقت»:**

او هغه دا چه په یو بنده کښی د منافقت ځینی عادتونه موجود وي، هغه عادتونه چه هغه پخپله بالذات بنده له دین څخه نه ووباسي، لکه په عادي او عامو خبرو کښی دروغ ویل، له وعدی او لوظ څخه مخالفت کول، په امانت کښی خیانت کول، دجنګ او شخړی په وخت کښی ښکنځل کول، د معاهدی په وخت کښی خیانت کول... اوداسی نور.

نو دي عادتونو ته په اسلامي شریعت کښې نفاق ویل شوې دې؛ ځکه دلته هم د بل چا تیرایستل او دبنده ظاهر له باطن څخه پکښې مخالف دې.

او منافقین په نفاق اکبر سره هم په دوه ډوله دي:

**لومړې ډول منافق:** هغه منافق چه هغه په حقیقت کښې اصلاً ایمان نه وي راوړی، بلکه ددوکی او تیرایستلو او غولولو په خاطر یي د اسلام اظهار کړې وي؛ تر څو په دغه ډول مسلمانان تیرباسي، او اسلام او مسلمانانو ته یو ډول پلمه جوړه کړي، او دې پخپله له وژنې او د مسلمانانو له بدبینۍ څخه په امن کښې شي، او دې په زړه کښې په الله تعالی او قیامت او نورو ایمانیاتو باندی ایمان نلري.

لکه چه الله تَعَالَى فرمايي: ﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَبِٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَمَا هُم بِمُؤۡمِنِينَ ۝٨ يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَمَا يَخۡدَعُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمۡ وَمَا يَشۡعُرُونَ ۝٩﴾ [البقرة: ۸-۹].

ترجمه: «ځینی له خلکو څخه داسی دي چه په ښکاره وایي او اقرار کوي چه مونږ په الله تعالی او وروستۍ ورځ«قیامت» باندي ایمان لرو، او دوئ په حقیقت کښې مومنان نه وي، (بلکه دا اقرار ددي لپاره کوي چه) دوي تیرباسي الله تعالی (په خپل ګومان) او هم تیرباسي مومنان، خو په حقیقت کښې دوئ نه تیرباسي مګر خو تیرباسي همدا خپل ځان، او دوئ ناپوهان دي نه پوهیږي».

همدارنګه دمنافقینو په صفت او بیان کښې په بل ځاي کښې الله تعالی

فرمايي: ﴿إِذَا جَآءَكَ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ قَالُواْ نَشۡهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُۥ وَٱللَّهُ يَشۡهَدُ إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ لَكَٰذِبُونَ ۝١ ٱتَّخَذُوٓاْ أَيۡمَٰنَهُمۡ جُنَّةً فَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۚ إِنَّهُمۡ سَآءَ مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ۝٢﴾ [المنافقون: ١-٢].

ترجمه: «کله چه راشي تاته منافقان نو تاته به وایي: مونږ ګواهي کوو چه یقیناً ته خامخا د الله تعالی پیغمبر یي، او الله تعالی ډیر ښه پوهیږي چه ته د الله تعالی رسول او استاځې یي، او الله تعالی ګواهي کوي چه بیشکه منافقان خامخا دروغجن دي، دوئ خپل قسمونه ډال کړي دي(د مؤمنانو په مخکښې)، نو خلک بندوي او ګرزوي یي د الله تعالی له دین څخه، ددوئ دا کار ډیر بد دې».

**دوهم ډول منافقان:** هغه څوک دي چه یو ځل مسلمانان شي، خو بیا بیرته مرتد شي، لکه هغه څوک چه له اسلام څخه وروسته دداسی ګناه مرتکب شي چه د اسلام سره مناقض وي، او له اسلام څخه یي ووباسي، سره له دي چه دې به هغه شان د اسلام دعوا کوي، بیا ځینی یي په خپل کفر او له دین څخه په وتلو پوهیږي، او ځینی نور بیا داسی ګومان کوي چه د دوئ دا نفاق هم یو ښه کار کوي.

په دي ډول منافقانو کښې شک حیرانتیا او تردد ډیر وي؛ ځکه دوئ کله د مسلمانۍ کارونه هم کوي، او ورسره هغه کارونه کوي چه دوئ له اسلامه ووباسي، او کفر او نفاق کښې یي ننباسي، لکه چه الله ﷻ فرمايي: ﴿إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَهُوَ خَٰدِعُهُمۡ وَإِذَا قَامُوٓاْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ قَامُواْ كُسَالَىٰ

يُرَآءُونَ ٱلنَّاسَ وَلَا يَذۡكُرُونَ ٱللَّهَ إِلَّا قَلِيلٗا ١٤٢ مُّذَبۡذَبِينَ بَيۡنَ ذَٰلِكَ لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِۚ وَمَن يُضۡلِلِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ سَبِيلٗا ١٤٣﴾ [النساء: ١٤٢-١٤٣].

ترجمه: «بيشكه منافقان (په خپل ګومان) تيرباسي الله تعالى، حال دا چه الله تعالى ددوئ ددي ګومان په مقابل كښى همدوئ تيرباسي، او كله چه لمانځه ته پاڅيږي، نو سست او ناراسته پاڅيږي، مقصد يي صرف دا وي چه خلكو ته ځان ښودنه كوي، او نه يادوي الله تعالى لره مګر ډير لږ، حيران او دوېړكځ وي په منځ د ايمان او كفر كښى، چه نه بيخي له مؤمنانو سره دې په باطن كښى هم لكه د ظاهري ايمان په شان، او نه له كافرو سره وي په ظاهر كښى لكه د باطني كفر په شان، او هغه څوك چه الله تعالى يي ګمراه كړي نو هغه لپاره به بله لار د هدايت او د حق پيدا نكړى».

همدارنګه الله ﷻ په بل ځاي كښى فرمايي: ﴿وَمَا مَنَعَهُمۡ أَن تُقۡبَلَ مِنۡهُمۡ نَفَقَٰتُهُمۡ إِلَّآ أَنَّهُمۡ كَفَرُواْ بِٱللَّهِ وَبِرَسُولِهِۦ وَلَا يَأۡتُونَ ٱلصَّلَوٰةَ إِلَّا وَهُمۡ كُسَالَىٰ وَلَا يُنفِقُونَ إِلَّا وَهُمۡ كَٰرِهُونَ ٥٤﴾ [التوبة: ٥٤].

ترجمه: «او نه دي منع كړي دوئ له دي نه چه قبول كړې شي له دوئ څخه نفقه او وركړه او خيرات ددوئ مګر همدي خبرى چه دوئ كافران شوي دي په الله تعالى او د هغه په پيغمبرﷺ باندي، او نه راځي لمانځه ته مګر په داسى حال كښى چه دوئ سست او ناراسته وي، او نفقه او وركړه او خيرات نه كوي دوي مګر دوئ دغه خپله نفقه او وركړه بده ګڼي او پرى

ناخوښی وي».

نو له دوئ څخه د کفري اعمالو صادریدل ددوئ نور نیک اعمال له قبلولو څخه منع کوي، اود هغی د قبول په مخ کښی یي خنډ کیږي؛ ځکه الله تعالی له کافر بنده څخه هیڅ یو عمل نه قبلوي.

نو لمانځه ته په سستۍ او ناراستۍ پاڅیدل او د الله تعالی په لار کښی او دهغه د رضا لپاره د مال د ورکړی بد ګڼل هم ددی دلیل دې چه دوئ د الله تعالی هغه نیکی وعدی په جنت او د هغه سره د مخامخ کیدلو تصدیق نه وو کړې، او له زړه څخه یي نه وو منلي.

همدا شان د الله تعالی لږ یادولو سبب همدا دې چه ددوئ ذکر (الله یادونه) یواځی په ژبو باندی د ریا او نفاق لپاره دې، او زړونه یي په حقیقت کښی د الله تعالی ددین سره محبت او مینه نلري، نو له همدي کبله دوئ حیران او دوپړک دي، نه خو په پټه او ښکاره کافران دي، او نه په پټه او ښکاره مؤمنان دي، بلکه دواړه صفتونه یي سره تقسیم کړي دي، چه په پټه کافران او په ښکاره مسلمانان دي.

امام ابن کثیر رحمه الله فرمایي: «ځینو منافقانو ته حتی ددوئ په زړونو کښی شك او تردد او حیرانتیا پیدا کیږي، نو کله یي مسلمانانو ته میلان پیدا کیږي، او کله یي کفارو ته میلان پیدا کیږي، لکه چه الله تعالی فرمایي: ﴿كُلَّمَآ أَضَآءَ لَهُم مَّشَوۡاْ فِيهِ وَإِذَآ أَظۡلَمَ عَلَيۡهِمۡ قَامُواْ﴾ [البقرة: ٢٠].

ترجمه: «هرکله چه دوئ ته رڼا شي نو دوئ پکښی ځي، او کله چه

ورباندی تورتم او تیاره شي، نو ودريږی».

همدارنګه عبد الله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي چه ما له رسول اللهﷺ څخه اوريدلي دي چه هغه به ویل: «مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ الشَّاةِ الْعَائِرَةِ بَيْنَ الْغَنَمَيْنِ تَعِيرُ إِلَى هَذِهِ مَرَّةً وَإِلَى هَذِهِ مَرَّةً». رواه مسلمٌ، وفي روايةٍ في مُسندِ الإمامِ أحمدَ: «تَعِيرُ إِلَى هَذِهِ مَرَّةً، وَإِلَى هَذِهِ مَرَّةً، لَا تَدْرِي أَهَذِهِ تَتْبَعُ، أَمْ هَذِهِ».

ترجمه: «دمنافق مثال د هغه حيرانی ګډی په شان دې چه کله یوی رمی ته ورځي او کله بلی رمی ته ورځي».

او په بل روايت کښې داسی راځي چه: «يو ځل يوی رمی ته ورځي، او کله بلی رمی ته ورځي، نه پوهيږي چه له دي رمی سره شي، او که له هغه بلی رمی سره شي».

الله جلّ جلاله په خپل کتاب قرآنکریم کښې او رسول اللهﷺ په خپلو سنتو کښې د منافقينو اعمال، عادتونه او نښې، او هم يي په دنيا او آخرت کښې د هغوئ سزا او عقاب، او د هغوئ سره د معاملی احکام، بيان کړي دي.

همدارنګه يي واضح کړي دي چه مؤمنان بايد له منافقانو او نفاق څخه په ډير احتياط سره ځان وساتي؛ ځکه دوئ ډيرسرسخته دشمنان دي، او مسلمانانو ته خطر يي له نورو کفارو څخه لوئ دې، لکه چه الله ﷻ فرمايي:

﴿هُمُ ٱلۡعَدُوُّ فَٱحۡذَرۡهُمۡ﴾ [المنافقون: ٤].

ترجمه: «همدوئ ستاسو دښمنان دي، نو ويره ورڅخه ولرئ او ځان

ورڅخه وساتی».

نو مؤمن باید ددوئ پلمو ته بیدار وي، او ورڅخه ځان وساتي، او ددوئ په کفري فسقي اعمالو او ګناهونو چه دوئ یي په یو ډول او بل ډول خلکو ته ښایسته کوي او عذرونه ورته بیانوي پرې تیر نه ووځي، او ددوئ له اخلاقو او عاداتو څخه لرې اوسي.

منافقان که نفاق یي اصغر وي او که اکبر ددواړو ډلو افراد یي په خپل منځ کښې سره په درجو او نفاق کې توپیر لري، چه ځینې یي په نفاق او کفر او سرکښې کښې له ځینې نورو څخه لوئ وي او ډیر بدبخته وي:

- ځینې یي په نفاق او منافقت باندي کلك او روږدي شوي وي، نو داسلام او مسلمانانو سره ددوئ دښمني، او ورسره راز راز پلمې ډیرې سختې او مضبوطې وي، او دوئ پر مسلمانانو باندي د قسماقسم حوادثو او عذابونو د راتلو منتظر وي، او پخپله هم ډیر کوښښ کوي چه ددوئ ترمنځ فتنې او دښمنې واچوي، او په هره طریقه چه توان یي کیږي دوئ سپك کړي، او ددوئ په زړونو کښې د کافرو شان او قوت لوئ ښکاره کړي، او ددي لپاره تبلیغات کوي او راز راز اعلامي طریقې کاروي، چه کله ځینې دروغ افواهات خوروي، او کله د هغوئ شبهات په خلکو کښې خپروي، او کله نفساني شهوات او بي حیائي د عوامو په منځ کښې ښائسته کوي، او کوښښ کوي چه هرڅنګه چه وکولې شي مسلمانانو ته د هغوئ په سرونو او عزتونو کښې اذیت او ضرر ورسوي، چه په دې لار کښې له هیڅ ډول پلمې

او کم ظرفی څخه دریغ نکوي، او کوښښ کوي چه د خپل توانه پوری پر دوئ ددوئ په دیني او دنیوي امورو کښی تنګي او سختي راولي، او خلکو کښی د الله دین ته له دعوت، جهاد في سبیل الله، امر بالمعروف او نهي عن المنکر څخه نفرت او کرکه پیدا کړي، او په ډیره سپین سترګی سره خپل دغه فساد او افساد ته اصلاح ترقي تنویر روشنفکري ازادخیالي هم وایي، او مخلصو مؤمنانو ته بی عقله، ناپوهان کم علمه وایي، تل د اسلامي شریعت د نفاذ څخه تښتي، او غواړي چه طواغیتو ته خپلی منازعی او خلافونه د حل او فصل لپاره یوسي، او د الله تعالی دلاری د مجاهدینو، او د اسلام او مسلمانانو د مرستندویانو سره تل بغض او کینه کوي.

لکه چه رسول اللهﷺ فرمایي: «آيَةُ الإِيمَانِ حُبُّ الأَنصَارِ وَآيَةُ النِّفَاقِ بُغْضُ الأَنْصَارِ». [متفق علیه]

ترجمه: «د ایمان نښه د رسول اللهﷺ له انصارو سره محبت او مینه کول دي، او د نفاق او منافقت نښه له دغه انصاروسره کینه او بغض کول دي».

نوکله چه انصاروﷺ د اسلام د مقدّس دین نصرت اومرسته کړی وه، له دي کبله له دوئ سره بغض کول د منافقت ښکاره نښه شوه.

## د منافقینو ځینی نوری علامی:

د مسلمانانو په خلاف په بدو امر کول، او له شریعت او ښو کارونو څخه منع کول، د الله تعالی په لار کښی له ورکړی څخه لاسونه موټی کول.

بله نښه یي داده چه کله مسلمانانو ته کوم مصیبت درد او غم ورسیږي نو

دوئ پرى خوشحاليږي، او پر مسلمانانو باندى رخه كوي، خو كه مسلمانانو ته خير، پر دښمن لاس برې او سربلندي په لاس ورشي نو دوئ پرى خفه كيږي.

لدي كبله خو ددوئ يو لوئ صفت او عادت او خوي دادې چه د مؤمنانو پرته كافرانو سره دوستي كوي، او هغوئ لپاره په مسلمانانو باندي جاسوسي كوي، او هغوئ د مسلمانانو په جنګ او له منځه وړلو او په مسلمانانو باندي د غلبى لپاره هغوئ تيزوي او ددى لپاره خپل ټول كوښښ پكار اچوي، او له كافرو څخه په دغه كارونو كښى مرسته او كومك غواړى.

الله ﷻ فرمايي: ﴿بَشِّرِ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ بِأَنَّ لَهُمۡ عَذَابًا أَلِيمًا ١٣٨ ٱلَّذِينَ يَتَّخِذُونَ ٱلۡكَٰفِرِينَ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۚ أَيَبۡتَغُونَ عِندَهُمُ ٱلۡعِزَّةَ فَإِنَّ ٱلۡعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ١٣٩ وَقَدۡ نَزَّلَ عَلَيۡكُمۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ أَنۡ إِذَا سَمِعۡتُمۡ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ يُكۡفَرُ بِهَا وَيُسۡتَهۡزَأُ بِهَا فَلَا تَقۡعُدُواْ مَعَهُمۡ حَتَّىٰ يَخُوضُواْ فِي حَدِيثٍ غَيۡرِهِۦٓ إِنَّكُمۡ إِذًا مِّثۡلُهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡكَٰفِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ١٤٠ ٱلَّذِينَ يَتَرَبَّصُونَ بِكُمۡ فَإِن كَانَ لَكُمۡ فَتۡحٞ مِّنَ ٱللَّهِ قَالُوٓاْ أَلَمۡ نَكُن مَّعَكُمۡ وَإِن كَانَ لِلۡكَٰفِرِينَ نَصِيبٞ قَالُوٓاْ أَلَمۡ نَسۡتَحۡوِذۡ عَلَيۡكُمۡ وَنَمۡنَعۡكُم مِّنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۚ فَٱللَّهُ يَحۡكُمُ بَيۡنَكُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِۗ وَلَن يَجۡعَلَ ٱللَّهُ لِلۡكَٰفِرِينَ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ سَبِيلًا ١٤١﴾ [النساء:۱۳۸-۱٤۱].

ترجمه: «بشارت او زيرې وركړه منافقانو ته چه يقيناً ددوئ لپاره

دردناك عذاب دې، منافقان هغه خلك دي چه كافران يي په دوستۍ نيولي دي پر ته له مؤمنانو، آيا دا منافقان له كافرانو څخه عزت غواړي، نو عزت خو ټول د الله تعالى سره دې، حال دا چه پر تاسو يي په قرآنكريم كښې داسې حكم نازل كړې دې: چه كله تاسو واوريدل چه د الله تعالى پر آياتونو باندي كفر كيږي او ورپورې مسخرې او ملنډې كيږي نو تاسو په دغه مجلس كښې ورسره مه كښينئ، ترڅو چه هغوئ له دي مسخرو څخه غير په نورو خبرو كښې مشغول شي؛ ځكه كه تاسو هم د الله تعالى په آياتونو پورې مسخرې اورئ او مخه يي نه نيسئ نو تاسو به هم د هغوئ په شان شئ، بيشكه الله تعالى منافقان او كافران په دوزخ كښې ټول سره راټولوي، هغه منافقان چه تاسو ته انتظار كوي چه كه تاسو ته الله تعالى فتح او نصرت دركړي نو وايي: آيا مونږ له تاسو سره په ظاهري ايمان كښې نه يو؟ او كه غلبه د كافرو وي نو هغوئ ته وايي: آيا مونږ نه وو غالب شوي پر تاسو (كه مونږ د مؤمنانو سره په رښتيا ودريدلي وائ)؟ او آيا مونږ بچ نكړئ د مؤمنانو څخه؟ نو الله تعالى به ستاسو تر منځ فيصله د قيامت په ورځ كوي، او هيڅكله به الله تعالى د كافرو لپاره په مؤمنانو باندي لار جوړه نكړي، او غلبه به پرې ورنكړي».

او دغه مخكښې يادشوي كارونه او خصلتونه د منافقينو د مختلفو طايفو دي، چه ځيني يي ددغه اكثرو مرتكب وي، او ځيني يي بيا د بعضو خصلتونو مرتكب كيږي، خو هرڅوك چه په ښكاره د اسلام دعوا كوي، او ورسره دداسې ګناهونو مرتكب كيږي چه په هغې سره د اسلام له مقدس

دین څخه ووځي، نو داسې شخص منافق او کافر بلل کیږي.

- او ځینې منافقان بیا د اسلام او کفر ترمنځ متردد او حیران وي، نو کله په پټه او ښکاره دمسلمانۍ کارونه کوي، او کله بیا هغه کارونه هم کوي چه په هغې باندي د اسلام څخه ووځي، نو دې دوپړک او متردد وي، چه خپل دین یې الله تعالی ته نه وي خالص کړې، او په اسلام کښې یې پښه ټینګه نه وي، او د الله تعالی په وعدو پوره باوري هم نه وي.

نو ددوئ حال هغه وخت ښکاره ګندیږي چه یو څه ابتلاء امتحان او ازمیښت پرې راشي، او په همغه وخت کښې ددوئ نفاق او دیني کمزوري راښکاره شي، نو بیا پر زړونو د مهر لګیدلو په سزا باندي ورته سزا ورکړل شي، او په خپلو اعمالو او احوالو کښې تل په شک او حیرانتیا اخته شي؛ ځکه دوئ حق پیژندلې دې خو پیروي یې نکوي، او الله تعالی دوئ ته نصیحت کړې دې خو دوئ هغه ونه منلو، او نه یې د الله تعالی د لارښوونې پیروي وکړه، دوئ د الله تعالی او دهغه د رسولﷺ په وعدو د رښتنولۍ باور نه لرلو، نو ددوئ په زړونو د الله تعالی له هدایت څخه ړوندوالې او ددنیا په ژوند بسنه، او د نفسي خواهشاتو پسې ورپسې کیدل غالب شو.

الله ﷻ فرمایي: ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ فَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ ۝٣﴾ [المنافقون: ۳].

ترجمه: «دا بدي دعمل دمنافقانو په سبب ددي ده چه بیشکه دوئ ایمان راوړې وو، بیا بیرته کافر شو، نو مهر ووهل شو ددوئ په زړونو باندي

نو دوئ نه پوهيږي».

همداراز الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ ثُمَّ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ ثُمَّ ٱزْدَادُواْ كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ ٱللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيلًا ﴿١٣٧﴾ بَشِّرِ ٱلْمُنَٰفِقِينَ بِأَنَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٣٨﴾﴾ [النساء: ۱۳۷-۱۳۸].

«بیشکه هغه کسان(یهودان) چه ایمان یي راوړې وو(په موسی عليه السلام باندي)، بیا کافر شو(د خسی په عبادت)، بیا یي ایمان راووړ(په توبې ایستلو سره)، بیا بیر ته کافر شو(په انجیل او عیسی عليه السلام)، بیا زیات شو له جهته د کفر (په محمد ﷺ باندی)، نه دې الله تعالی چه مغفرت او بخښنه به وکړي دوئ ته، او نه به لار وښيي دوئ ته سمه صافه لار(ترڅو چه دوئ په دي خپل کفر باندی مستمر وي)، نو زیري ورکړه منافقانو ته چه بیشکه دوئ لپاره دردناک عذاب دې».

او دا ډول منافقان د هغه کفري اعمالو مرتکب کیږي چه دوئ له اسلام څخه ووباسي، لکه د فتنی او سختئ په وخت کښی د کفارو سره دوستي کول، په دین پوری مسخری کول، الله تعالی او دهغه رسول ﷺ ته ښکنځل کول، د اسلامي شریعت د نفاذ څخه نفرت کول او تښتیدل، او په مقابل کښی طاغوت ته فیصلی وړل او د هغی فیصلی منل، او د الله تعالی وعدی دروغ ګڼل، او داسی نور کارونه او ویناوي او عقیدی چه بنده له اسلامي دین څخه ووباسي.

او کله کله بنده په یوه وینا هم کافر کیږي لکه چه الله تعالی فرمایي:

﴿يَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ مَا قَالُواْ وَلَقَدْ قَالُواْ كَلِمَةَ ٱلْكُفْرِ وَكَفَرُواْ بَعْدَ إِسْلَـٰمِهِمْ﴾ [التوبة:٧٤].

ترجمه: «دا منافقان قسمونه کوي په الله تعالی چه دوئ هغه ناکاره وینا نه ده ویلی، بلکه خامخا یقیناً دوئ ویلی ده د کفر کلمه، او کافر شوي دي وروسته له اسلام راوړلو څخه».

نو دوئ د کفر وینا او کلمه له هغه وروسته ویلی وه چه یو ځل یي اسلام راوړي وو، او په دغه کلمه باندی کافر شول.

وقال حُذيفةُ بنُ اليَمَانِ رضي الله عنه: «إِنْ كَانَ الرَّجُلُ لَيَتَكَلَّمَ بِالْكَلِمَةِ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ فَيَصِيرُ مُنَافِقًا، وَإِنِّي لأَسْمَعُهَا مِنْ أَحَدِكُمْ فِي الْمَقْعَدِ الْوَاحِدِ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ، لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلْتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ، وَلَتُحَاضُّنَّ عَلَى الْخَيْرِ، أَوْ لَيُسْحِتَنَّكُمَ اللَّهُ بِعَذَابٍ جَمِيعًا، أَوْ لَيُؤَمِّرَنَّ عَلَيْكُمْ شِرَارَكُمْ، ثُمَّ يَدْعُو خِيَارُكُمْ فَلاَ يُسْتَجَابُ لَهُمْ». [رواه أحمدُ وابنُ أبي شَيْبَةَ].

ترجمه:حذیفه رضي الله عنه فرمایي: «د رسول الله ﷺ په زمانه کښی به کله یو سړي یو کلمه وویله، نو په هغی کلمه به دغه سړي منافق کیدلو، اوس زه هغسی کلمه زه له تاسو څخه په یو مجلس کښی څلور ځلی اورم، خامخا به په نیکو کارونو باندی خلکو ته امر او وصیت او نصیحت کوئ، او له بدو کارونو څخه به خلك منع کوئ، او د خیر په کارونو به خلك تیزوی، (او کنه نو) نازل به کړي په تاسو ټولو باندي عذاب، او یا به پر تاسو باندی ستاسو بدترین

او شرپسند خلك مشران او مسلّط كړي، بيا به ستاسو غوره خلك هم دُعا كوي خو د هغوئ دُعا به نه قبليږي».

وعن أبي هُريرةَ﵁ عَنْ النَّبِيِّ ﷺ قال: «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِضْوَانِ اللهِ لاَ يُلْقِي لَهَا بَالاً يَرْفَعُ اللَّهُ بِهَا دَرَجَاتٍ وَإِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللهِ لاَ يُلْقِي لَهَا بَالاً يَهْوِي بِهَا فِي جَهَنَّمَ». [رواه البخاريُّ].

ترجمه: «بيشكه يو بنده كله داسی يوه كلمه او خبره وكړي چه په هغی الله تعالی رضا كيږي، او ددغه بنده ورته هيڅ سوچ نه وي، او كوم اهميت ورته نه وركوي، خو الله تعالی يي ورباندي ډيری درجی پورته كوي، او بيشكه كله يو بنده يوه كلمه او خبره وكړي چه الله تعالی ورباندي په غصه او قهر كيږي، او د بنده ورته هيڅ خيال او سوچ نه وي، او نه كوم اهميت ورته وركوي، خو الله تعالی يي ددغی كلمی او خبری په سبب په دوزخ كښې غورزوي».

وعن عَلْقمةَ بنِ وَقَّاصٍ الليثيِّ عن بِلالِ بنِ الحارِثِ المُزنِيِّ﵁ أن رسولَ اللهِ ﷺ قال: «إِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِضْوَانِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ، مَا يَظُنُّ أَنْ تَبْلُغَ مَا بَلَغَتْ، يَكْتُبُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ لَهُ بِهَا رِضْوَانَهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ، مَا يَظُنُّ أَنْ تَبْلُغَ مَا بَلَغَتْ، يَكْتُبُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ بِهَا عَلَيْهِ سَخَطَهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ». قَالَ: فَكَانَ عَلْقَمَةُ يَقُولُ: كَمْ مِنْ كَلَامٍ قَدْ مَنَعَنِيهِ حَدِيثُ بِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ.

ترجمه: «بيشكه يو سړی كله د الله تعالی د خوشحالۍ او رضامندۍ

داسی خبره وکړي چه د هغه هیڅ ګومان نه وي چه هغه داسی درجو ته رسیږي، خو الله تعالی ددغه خبری په سبب ددي بنده لپاره تر قیامته پوری خپله رضامندي وليکي، او کله يو سړې د الله د قهر او د غصی يوه خبره وکړي چه دهغه هیڅ ګومان نه وي چه دا به دومره بده خبره وي، خو الله تعالی ددغه کلمی په سبب ورته د قیامته پوری خپله غصه او قهر وليکي».

علقمه رحمه الله وايي: «د بلال بن الحارث رضي الله عنه دی حديث شريف زه له ډيرو خبرو له کولو ځخه منع کړې يم».

ورَوَى البَيْهقِيُّ عن مُحَمَّدِ بنِ عَمْرِو بنِ عَلْقَمَةَ بنِ وَقَّاصٍ أنه قال: كانَ رَجُلٌ بَطَّالٌ يدخُلُ على الأُمراءِ فيُضْحِكُهم، فقال له جَدِّي: (وَيْحَكَ يا فُلانُ، لِمَ تَدْخُلُ على هؤلاءِ فتُضْحِكُهم؟! فإني سَمِعتُ بلالَ بنَ الحارِثِ المُزنِيَّ صَاحِبَ رسولِ اللهِ ﷺ يُحدِّثُ...) فذكَرَ الحديثَ.

ترجمه: «محمد بن عمرو بن علقمه بن وقاص رحمه الله وايي: يو وخت يو لټ او بی کاره بی روزګاره سړې وو، د اميرانو او سرکاري او حکومتي خلکو خوا ته ورتللو، نو هغوئ ته به يي داسی خبری کولی چه هغوئ به يي خندول، نو زما نيکه (علقمه) ورته وويل: اي فلانيه ! خوار شی ته ولی دغه سرکاري خلکو ته ورځی او خندوي يي؟ بيشکه ما له بلال بن حارث مزني رضي الله عنه ځخه اوريدلي دي....، يعنی دغه مخکنې حديث شريف ورته ويلې دې».

نو د ژبی ځخه مسلمان ته لوئ خطر متوجه دې، او هغه خبری چه له بنده ځخه ووځي ډير لوئ شان لري، چه يايي جنت ته رسوي، او يايي دوزخ ته،

او هغه څوك چه په دي پوهه شي چه دا خبری هم زما عمل دې، او زه وربانديی نيول کيږم، نو بيا پخپلو خبرو کښی احتياط کوي، او د تقوا او پرهيزګارۍ نښی پری ښکاره شي؛ ځکه که څوك پخپلو خبرو کښی بی احتياطي وکړي، او دينداري يي کمزوری وي، نو کيداي شي داسی يوه خبره وکړي چه الله تعالی په قهر او غصه کړي، او يا داسی کلمه ووايي چه پری کافر کيږي، او د اسلامي دين څخه پری ووځي، والعياذ بالله.

او داسی واقعات د فتنو په وخت کښی ډير وي، په ځانګړي ډول په دی آخره زمانه کښی، لکه چه رسول الله ﷺ د ابوهريره رضي الله عنه په حديث کښی فرمايي: «بَادِرُوا بِالأَعْمَالِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ مُؤْمِنًا وَيُمْسِيْ كَافِرًا أَوْ يُمْسِيْ مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا يَبِيعُ دِينَهُ بِعَرَضٍ مِنَ الدُّنْيَا». [متفق عليه].

ترجمه: «د تورو تيارو شپو په شان فتنو د راتګ څخه مخ دمخه د عمل په کولو باندي تادي او عجله وکړئ؛ ځکه د فتنو وخت داسی دې چه سهار به يو سړې مؤمن وي خو بيګا ته به کافر شوې وي، او بل سړې به بيګا کښی مؤمن وي خو سهار به کافر شوې وي، چه خپل دين به ددنيا د سازوسامان په بدل کښی خرڅوي. الله تعالی دی مونږ تری وساتي».

له همدي کبله د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د تابعينو رحمهم الله په زړونو کښی به سخته ويره وه چه هسی نه چه د منافقينو اعمال ورڅخه صادر نشي.

لکه چه امام بخاري رحمه الله په صحيح بخاري کښی له ابن ابي مُلَيْكَه رحمه الله

څخه نقل کوي چه هغه ویل: «د رسول اللهﷺ له صحابه کرامو ﷺ څخه دیرش صحابه کرام ما لیدلي دي چه دا ټول به په خپل ځان باندی له نفاق څخه ویریدل، په دوئ کښې یوه هم نشو ویلې چه دده ایمان د جبریل او میکاییل علیهما السلام له ایمان سره برابر دې، او د هغه په شان دې».

او له حسن بصري رحمه الله څخه نقل دي چه هغه به ویل: «له الله تعالی څخه ویره نکوی مګر مؤمن بنده یي کوي، او د الله تعالی له عذابه څخه نه په امن کیږي مګر منافق بنده».

او زید بن وهب رحمه الله وایي: «د صحابه کرامو ﷺ په زمانه کښې یو منافق سړې مړ شو، نو حذیفه ﷺ پری د جنازی لمونځ ونکړ، نو عمر بن الخطاب ﷺ ورته وویل: دا هم له منافقانو څخه دې؟ هغه ورته وویل: هو، بیا عمر ﷺ ورته وویل: ستا دي په الله تعالی قسم وي چه زه هم له منافقانو څخه یم؟ هغه ورته وویل: نه، خو له تا څخه وروسته به د هیچا دغسی سوال ته جواب ونه وایم».

دا ځکه چه حذیفه ﷺ د رسول اللهﷺ رازدار وو، چه هغه ته رسول اللهﷺ پټ د منافقینو نومونه ورښوولي وو، نو هغه ته په دی امت کښې د منافقینو احوال احکام اعمال تر هر چا ډیر ورمعلوم وو، او په دي سبب به صحابه کرامو ﷺ دده ددغه خصوصیت په سبب د هغه قدر او احترام زیات کولو.

او له همدي کبله چه کله به مړې وشو، نو عمر ﷺ به حذیفه ﷺ ته کتل چه که حذیفه ﷺ به پری جنازه کوله نو عمر ﷺ به هم پری جنازه کوله، خو

که حذیفه رضي الله عنه به پرې جنازه نه کوله، نو عمر رضي الله عنه به هم پخپله پرې جنازه نه کول بلکه بل څوک به یې د خپل ځان لخوا نائب او وکیل کړ، چه د جنازې لمونځ پرې وکړي؛ تر څو چه د رسول الله ﷺ هغه پټ راز افشا نشي.

## لسم درس: له منافقت څخه کرکه او ویرَونه(۳/۲)

له نفاق او منافقت څخه د بچ کیدلو، سلامتیا او بیزارۍ لار دا ده چه بنده د الله تعالی د ښوولې شوی لار پیروي وکړي، لکه چه الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَوۡ أَنَّهُمۡ فَعَلُواْ مَا يُوعَظُونَ بِهِۦ لَكَانَ خَيۡرٗا لَّهُمۡ وَأَشَدَّ تَثۡبِيتٗا ٦٦ وَإِذٗا لَّأٓتَيۡنَٰهُم مِّن لَّدُنَّآ أَجۡرًا عَظِيمٗا ٦٧ وَلَهَدَيۡنَٰهُمۡ صِرَٰطٗا مُّسۡتَقِيمٗا ٦٨ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ فَأُوْلَٰٓئِكَ مَعَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَۚ وَحَسُنَ أُوْلَٰٓئِكَ رَفِيقٗا ٦٩ ذَٰلِكَ ٱلۡفَضۡلُ مِنَ ٱللَّهِۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ عَلِيمٗا ٧٠﴾ [النساء: ٦٦-٧٠].

ترجمه: «که دوئ هغه کار کړې واي چه دوئ ته ورباندي( د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ لخوا) نصیحت او وعظ کولې شي، نو ددوئ لپاره به ډیر بهتر وو، او هم به ډیر محکم وو له جهته د کلکوالي د ایمان، نو پدغه وخت کښی به ورکړې وو مونږ دوئ ته ډیر لوئ اجر او ثواب، او خامخا به مو دوئ ته ورښوولی وه سمه لار، او هغه څوک چه غاړه کیږدي الله تعالی او د هغه رسولﷺ ته، نو همدوئ به له هغه چا سره ملګري وي چه الله تعالی پری نعمت کړې دې، له انبیاؤ صدیقینو شهیدانو او نورو نیکانو بندګانو څخه، او ډیر ښایسته دي دوئ په ملګرتوب کښی، او همدا کار د الله تعالی لخوا

مهرباني ده، او کافي بس دي الله تعالی عالم خبردار».

نو پدي آياتونو سره ښرګنده شوه چه د منافقانو ددي لوي تاوان سبب دا وو چه هغوئ د الله تعالی له هدايت او ښوونی څخه سرغړونه کړی وه، او دوئ د الله تعالی رضامندي فضل مهرباني دغه لوئ ثواب او اجر او د انبياؤ صديقينو شهيدانو او نيکانو بندګانو ملګرتوب يي وبايللو، او ددغه بدترينو اعمالو مرتکب شول، لکه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ دروغجن ګڼل، په الله تعالی باندی بدګوماني کول، هغه کارونو پسی ورپسی کيدل چه الله تعالی په غصه او قهر کوي، هغه څه چه الله تعالی يي خوښوي د هغی بد ګڼل، او په قول او فعل سره د الله تعالی ددين سره مقابله او جګړه کول، د کافرانو (که اهل کتاب وي او که مشرکان له هغوئ) سره دوستي کول، او د مسلمانانو په ضد د کفارو مرسته او کومک کول، او مسلمانانو ته ضرر رسوَل، نو ددوئ ددی لوئ جرم په سبب د ډير سخت عذاب وړ او لايق شول.

الله تعالی فرمايي: ﴿وَيُعَذِّبَ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتِ وَٱلۡمُشۡرِكِينَ وَٱلۡمُشۡرِكَٰتِ ٱلظَّآنِّينَ بِٱللَّهِ ظَنَّ ٱلسَّوۡءِۚ عَلَيۡهِمۡ دَآئِرَةُ ٱلسَّوۡءِۖ وَغَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِمۡ وَلَعَنَهُمۡ وَأَعَدَّ لَهُمۡ جَهَنَّمَۖ وَسَآءَتۡ مَصِيرٗا ۝٦﴾ [الفتح: ٦].

ترجمه: «او چه عذاب ورکړي منافقانو سړو او منافقانو ښځو ته، او مشرکانو سړو او مشرکاتو ښځو ته، هغه منافقان چه ګومان يي کړې دې په الله تعالی باندی بد ګومان، پر دوئ دي وي بدی پيښی، او غضب او غوصه

او قهر کړې دې پردوئ باندی الله تعالی، او لعنتیان کړي یي دي، او تیار کړې یي دې دوئ ته دوزخ، او ډیر بد ځاي د ورتللو دې دا دزوخ».

همدارنګه الله تعالی فرمایي: ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ ٱتَّبَعُواْ مَآ أَسۡخَطَ ٱللَّهَ وَكَرِهُواْ رِضۡوَٰنَهُۥ فَأَحۡبَطَ أَعۡمَٰلَهُمۡ ۝٢٨﴾ [محمد: ۲۸].

ترجمه: «دا(وهل د ملایکو ددوئ مخونه او شاګانی) پدی سبب دي چه دوئ د هغه څه پیروي کوله چه الله تعالی یي په قهر او غضب کولو، او دوئ بد ګڼلو د الله تعالی رضامندي، نو الله تعالی ددوئ نیک عملونه برباد او ابته کړل».

او ددوئ د ظاهر او ښکاره له باطن او زړونو څخه مخالفت ددي سبب شو چه د قبیحو او بدو اعمالو مرتکب شول، لکه دروغ، غداري، خیانت، ښکنځل او د وعدی خلاف کول، او دا داسی عادات دي چه دا منافقان وربانديې پیژندل کیږي.

## د منافقانو عملونه په دوه ډوله دي:

**لومړي ډول اعمال:** هغه کفري اعمال چه څوک یي مرتکب شي نو هغه کافر شو، او د اسلام د مقدس دین له کړئ څخه بهر ووتلو، اګر که هغه لمونځ کوي، روژه نیسي، او داسی ګومان هم کوي او دعوا کوي چه دې ګنی مسلمان دې.

دنفاق دغه اعمال لکه: د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ دروغجن ګڼل،

الله تعالی او د هغه آیاتونو او د هغه رسولﷺ سره بغض او کینه کول، وربوری مسخری کول، او دمسلمانانو په خلاف د کفارو سره دوستي او د هغوئ مرسته او کومک کول.

نو دغه اعمال او داسی نور د اسلام سره ضد اعمال دي، نو څوک چه يي مرتکب شي، هغه مؤمن پاتی کیدې نشي، بلکه هغه کافر دې د اسلام د مقدس دين څخه وتلې دې، که سره له دی هم هغه د اسلام دعوا کوي نو دې په نفاق اکبر سره منافق دې.

د نفاق دی ډول ته ځینی علماء نفاق اعتقادي هم وايي؛ ځکه دلته کفر دده په زړه کښی ننوتې دې، ګنی له مؤمن زړه څخه داسی کفري اعمال او اقوال نه صادريږي، خو د هغوئ مقصد دلته دا نه دې چه نفاق اکبر يواځی په اعتقادي امورو کښی کیدې شي، او په نورو کښی نشي کیدې، او اعتقادي نفاق ددوئ په نيز په اعتقادي امورو پوری خاص او منحصر نه دې.

**دوهم ډول اعمال:** هغه بد عادات او اعمال دي چه هغه اګر که بنده پخپله کفر ته نه ووباسي، خو دغسی اعمال او عادتونه پرته له خالص منافق څخه په بل چا کښی نه راټوليږي، نو مؤمن بايد له دغسی اعمالو او عاداتو څخه ځان وساتي، ترڅو په ده کښی د نفاق له عاداتو څخه کوم عادت رانشي.

او دغه اعمال او عادات رسول اللهﷺ په خپل مبارک حديث شريف کښی بيان کړي دي، لکه چه فرمايي: «آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلاَثٌ: إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ،

وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ». [متفق عليه].

وفی رواية لمسلم: «آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلاَثٌ وَإِنْ صَامَ وَصَلَّى وَزَعَمَ أَنَّهُ مُسْلِمٌ».

وفي روايةِ أحمدَ: «ثَلاَثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ فَهُوَ مُنَافِقٌ، وَإِنْ صَامَ وَصَلَّى وَزَعَمَ أَنَّهُ مُسْلِمٌ».

وفي الصحيحين من حديثِ عبدِ اللهِ بنِ عَمْرِو بنِ العاصِ رضِي اللهُ عنهما قال: قال رسولُ اللهِﷺ: «أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا، وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا: إِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ، وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ».

ترجمه: «د منافق نښې درې دي: کله چه خبرې کوي نو دروغ وايي، او کله چه وعده او لوظ وکړي، مخالفت ځينې کوي، او کله چه ورسره امانت کېښودل شي، نو پکښې خيانت کوي».

او د مسلم شريف په يو روايت کښې داسې راغلي دي: «د منافق نښې درې دي- اګر که هغه لمونځ هم کوي، او روژه هم نيسي او ځان ته مسلمان هم وايي...» الحديث.

اود مسند أحمد په يو روايت کښې بيا داسې دي: «درې عادتونه او خصلتونه دي چه کله په يو بنده کښې راټول شي نو هغه خالص منافق کيږي....».

او په صحيح بخاري شريف او صحيح مسلم شريف کښې د عبد الله بن

عَمْرو بن العاص رضي الله عنهما په روایت کښې رسول الله ﷺ فرمايي: «څلور عادتونه او خصلتونه دي چه کله دا څلور سره په یو بنده کښې راټول شي نو هغه خالص منافق شي، او که په یو چا کښې له هغې څخه کوم یو خصلت او عادت موجود وي، نو په هغه کښې به یوخصلت او عادت نفاق او منافقت وي، تر هغه پورې چه دغه خصلتونه پرېږدي، او هغه دا چه: کله خبرې کوي نو دروغ به وايي، او چه کله معاهده وکړي نو په هغې کښې غدر کوي او ماتوي یې، او چه کله وعده او لوظ وکړي، نو ورڅخه مخالفت کوي، او وعده خلافي کوي، او چه کله یې د چا سره جنګ جګړه راشي نو ښکنځل به کوي».

نو که په یو چا کښې دغه څلور صفتونه او عادتونه سره راټول شول، نو دې خالص منافق دې.

ځکه دلته «إذا» د غایي د بیان لپاره نه دې، نو دا په دې خبره دلالت کوي چه له دې څخه مراد دا دې چه دغه کارونه د یو چا خصلت اوعادت جوړ شي، او په تکرار او زیات یې کوي.

مقصد دا چه هغه څوک چه یو کله شاذ نادر ورڅخه دغسې کارونه صادر شي نو هغه به د منافقینو له اعمالو څخه یو عمل کړې وي، او د یوې ګناه مرتکب شو، او په دي باندې هغه په منافقانو کښې نه شمارل کیږي، او

نه په هغه چا کښې چه په هغه کښې د نفاق او منافقت کوم عادت وي، ترڅو چه يي دغه بد کارونه لکه د خپل عادت او خصلت ګرزولې نه وي، اويا ورباندی مشهور شوې نه وي.

په ياد بايد ولرو چه د ځينی خلکو په زړونو کښې ايمان او د نفاق ځينی عادتونه سره راټوليدې شي.

هر چه نفاق اکبر دې نو هغه او ايمان سره په يوه زړه کښې نه راټوليږي، بلکه د نفاق اکبر خاوند خالص کافر دې، اګر که لمونځ کوي،روژه نيسي، او ګومان او دعوا هم کوي چه دې مسلمان دې؛ ځکه دی کفر دده ټول نيک عمل برباد او ابته کړې دې، ځکه ايمان او کفر اکبر سره نه يوځاي کيږي، لکه چه الله تعالی فرمايي:

﴿وَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلۡإِيمَٰنِ فَقَدۡ حَبِطَ عَمَلُهُۥ وَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ۝٥﴾ [المائدة: ٥].

ترجمه: «او هغه څوک چه له ايمان راوړلو څخه انکاري شي، نو د هغه نيک عمل برباد او ابته شو، او هغه به په آخرت کښې له تاوانيانو څخه وي».

او هرچه نفاق اصغر دې-کوم چه بنده له دين اسلام څخه نه وباسي- نو کيداي شي چه په يو مسلمان کښې دی د نفاق اصغر ځينی خصلتونه او عادتونه وي، لکه چه د عبد الله بن عَمْرو بن العاص رضي الله عنهما حديث شريف

پری دلالت کوي.

او په صحیح مسلم شریف کښې د أبوهریره‌ﷺ په حدیث کښې رسول اللهﷺ فرمايي: «مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ» [رواه مسلم].

ترجمه: «هغه مسلمان چه مړ شي، او هغه په خپل عمر کښې نه غزا وکړي، او نه پخپل زړه کښې د غزا نیت تیارې او مینه ونلري، نو دې هم د نفاق په یوه څانګه کښې مري».

او حذیفه‌ﷺ فرمايي: «زړونه په دری ډوله دي:

۱- یو هغه زړه دې چه دوه مخی او دوه رنګه یا کوږ وي، نو دا د منافق زړه دې.

۲- بل هغه زړه دې چه له حق څخه په پردو کښې وي، نو دا د کافر زړه دې.

۳- بل هغه زړه دې چه صفا او پړقیدونکې وي، لکه په ده کښې چه ډیوه وي چه رڼا کوي، نو دا د مؤمن زړه دې.

۴- بل هغه زړه دې چه په هغه کښې د نفاق خصلتونه هم وي او ورسره ایمان هم وي، نو دده مثال داسی دې لکه په جسم کښې دانه(نکی)،چه هم پکښې وینه وي، او هم زوی، یايي مثال داسی دې لکه هغه ونه چه کله ورته

ښایسته او ښی اوبه راځی او هغه پری خړوبیږي، او کله ورته خرابی اوبه راځي او پری خړوبیږي، نو هر کومی اوبه چه غالبه شوی، نو خوند به هم د هغی وي». [رواه ابن أبي شيبة في المصنف وفي كتاب الإيمان، وصححه الألباني].

او علي ﷺ فرمايي: «ايمان لومړې د يو کوچني سپين ټکي په شان به زړه کښی پیلیږي، بیا هرڅومره چه ایمان زیاتیږي نو دغه سپینوالې ورسره زیاتیږي، تر دي چه ټول زړه تک سپین شي، او نفاق په زړه کښی د تور ټکي په شان پیلیږي، بیا هرڅومره چه پکښی نفاق زیاتیږي دغه تور ټکې ورسره زیاتیږي، تر دی چه ټول زړه تک تور شي». [رواه ابن أبي شيبة في كتاب الإيمان والبيهقي في شعب الإيمان].

مقصد دا چه په مسلمان کښی نفاق اصغر«وړوکې نفاق» راتلاي شي، په چا کښی لږ، او په چا کښی ډیر، د چا ایمان چه قوي وي او د الله تعالی اطاعت او پیروي پکښی ډیره وي، نو نفاق به یي کمزورې وي، یعنی په هغه کښی به د نفاق بوي او یو څه نښی نښانی وي، نو کله کله به تری دروغ یا وعده خلافي او داسی نور ګناهونه کیږي.

او له ځینی خلکو به دغه ګناهونه ډیر واقع کیږی، او ورسره به دالله تعالی یاد او ذکر هم کم کوي، او د الله تعالی له حدودو څخه به تیرې هم کوي، لکه د ځینی حُرُماتو هتك او سپکاوې کول، په واجباتو کښی تقصیر

او کوتاهي کول، او په شهواتو کښې غرقیدل او اخته کیدل، او په شبهاتو باندی تیروتل.

نو دده په زړه کښې به د لږ ایمان تر څنګ ډیر نفاق وي، تر دی چه ځینی مسلمان به داسی هم وي چه لمونځ به په منډه او تادئ سره کوي، هغه هم په خپل وخت نه، بلکه په مکروه وخت کښې به يې کوي، او لکه چه ځان تری خلاصوي، د هغې د آدابو او خشوع او خضوع مراعات پکښې نکوي، لکه په صحیح مسلم شریف کښې د انس بن مالکﷺ په روایت کښې چه رسول اللهﷺ فرمايي:

«تِلْكَ صَلاَةُ الْمُنَافِقِ يَجْلِسُ يَرْقُبُ الشَّمْسَ حَتَّى إِذَا كَانَتْ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ قَامَ فَنَقَرَهَا أَرْبَعًا لاَ يَذْكُرُ اللَّهَ فِيهَا إِلاَّ قَلِيلاً». [رواه مسلم].

ترجمه: «دغه د منافق لمونځ دې چه ناست وي د لمر انتظار کوي، تردی چه کله پریوتلو ته نژدی شي او لمر د شیطان د ښکرو ترمنځ شي، نو دې پاځي او څلور واری ښکته پورته شي، لکه د چرګ پشان ټکی وکړي، چه الله پکښې نه یادوي مګر لږ».

نو دا د هغه چا حال دې چه د هغه پر زړه باندي منافقت غالب شوې وي تر دی چه د «منافق» نوم مستحق او وړ وګرزي، سره له دي چه دهغه په زړه کښې دومره ایمان هم وي چه دیته يي نه پریږدي چه لمونځ بیخي پریږدي.

دداسی ډول خلکو څخه ځینی خطرناک ګناهونه صادریږي، لکه: ریا، ځان ښودنه، او هغه څه چه نیک عمل برباد او ابته کوي، لکه د ورکړی او نفقی په وخت کښی زباتَول، محتاج ته بدی ردی ویل، او اخروي عمل په سبب دنیایي ګټهی غوښتل، او کله چه بنده ځانته او د خلکو له ستر ګو پناه وي هلته د حُرُماتو انتهاک او سپکاوې کول.

نو داسی خلك په ډیر خطرناك حالت کښی دي؛ ځکه کیداي شي دده دا سستي او لټهي دې – نعوذ بالله– له دین څخه وتلو ته اړ کړي، او څوك چه په داسی منافقت مړ شو چه دهغه په زړه کښی یو څه ایمان هم وي، نو داسی بنده د اهل الکبائر څخه شمارل کیږي، په چا چه د ډیر سخت عذاب ویره ده، خو داسی بنده به په اور کښی د تل لپاره نه پاتي کیږي؛ ځکه دده په زړه کښی یو څه اسلام او ایمان پاتی وو.

بل دا چه له رسول اللهﷺ څخه په یو صحیح حدیث شریف کښی نقل دي چه هغه فرمایي: «يَدْخُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَأَهْلُ النَّارِ النَّارَ ثُمَّ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى أَخْرِجُوا مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَيُخْرَجُونَ مِنْهَا قَدِ اسْوَدُّوا فَيُلْقَوْنَ فِي نَهَرِ الْحَيَا، أَوِ الْحَيَاةِ شَكَّ مَالِكٌ - فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي جَانِبِ السَّيْلِ أَلَمْ تَرَ أَنَّهَا تَخْرُجُ صَفْرَاءَ مُلْتَوِيَةً». [رواه البخاريُّ من حديثِ أبي سَعِيدٍ الخُدْريِّ رضي الله عنه].

ترجمه: «جنتیان به جنت ته ننوځي، او دوزخیان به دوزخ ته ننوځي، بیا به الله تعالی ووایي: له اوره هر هغه څوک هم راوباسۍ چه د هغه په زړه کښې د اوري یا جِنجرِ دانې هومره ایمان وي، نو داسې خلك به پداسې حال کښې راوایستل شي چه تك تور شوي به وي، بیا به د ژوند په یو نهر (ویاله) کښې وغورزول شي، نو له سره به راوه ټوکیږي او راشنه به شي، لکه د سیلاب وروسته چه کومه دانه او شینکې راشین کیږي، که ورته فکر مو وي هغه شین ډکې او تیغ له کمزورئ څخه زیړ او تاو شوې وي».

خو څوك چه د اسلام نواقضو او ماتوونکو ګناهونو څخه د کومې ګناه مرتکب شي، لکه په دین پوره ټوکی، مسخرې کول، الله تعالی او رسولﷺ ته ښکنځل کول، د مسلمانانو پر خلاف له کفارو سره دوستي او د هغوئ مرسته کول، نو داسې خلك کافران دي، د اسلام له دین څخه وتلي دي، بلکه ایمان یي له زړه څخه وتلې دې. نعوذ بالله من ذلك.

### د منافق توبه ویستل:

که یو منافق له مرګه مخکښې توبه ووباسي او خپل عمل سم کړي، او د الله تعالی په دین کلك شي، او خپل دین او عمل خاص د یو الله تعالی د رضا لپاره خالص کړي، نو دده توبه صحیح ده، او الله تعالی یي ورڅخه قبلوي، لکه چه الله تعالی فرمایي:

﴿إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ فِي ٱلدَّرۡكِ ٱلۡأَسۡفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمۡ نَصِيرًا ﴿١٤٥﴾ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُواْ وَأَصۡلَحُواْ وَٱعۡتَصَمُواْ بِٱللَّهِ وَأَخۡلَصُواْ دِينَهُمۡ لِلَّهِ فَأُوْلَٰٓئِكَ مَعَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۖ وَسَوۡفَ يُؤۡتِ ٱللَّهُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَجۡرًا عَظِيمًا ﴿١٤٦﴾ مَّا يَفۡعَلُ ٱللَّهُ بِعَذَابِكُمۡ إِن شَكَرۡتُمۡ وَءَامَنتُمۡۚ وَكَانَ ٱللَّهُ شَاكِرًا عَلِيمًا ﴿١٤٧﴾﴾ [النساء: ١٤٥-١٤٧].

ترجمه: «بیشکه منافقان به په آخري لاندینی برخه د اور کښی وي، او هیڅکله به دوئ ته څوک کومکي او مرستندویه پیدا نکړی، مګر هغه کسان چه توبه یي ویستلي وي(مخکښی له مرګه) او خپل عمل یي اصلاح او سم کړي وي، او د الله تعالی پر دین یي منګولی لګولی وي، او خپل دین او عمل یي د یو الله تعالی د رضا لپاره خالص کړي وي، نو دغه ډول خلک به د نورو مؤمنانو سره ملګري وي، او الله تعالی به ټولو مؤمنانو ته لوي اجر او ثواب ورکړي، الله تعالی ستاسو په عذابولو باندی څه کوي؟ که تاسو د الله تعالی شکر ووباسی، او پری ایمان راوړئ، او الله تعالی شکرګزار او پوهه دي».

همدارنګه هغه مسلمان چه په هغه کښی د منافقت ځینی عادتونه وي، که توبه تری وباسي، نو الله تعالی یي توبه قبلوي، او له منافقت څخه پاکیږي.

په دی مسأله کښی یو عجیبه شبهه او لغز هم دي، او هغه دا چه حذیفه بن الیمانﷺ د عبد الله بن مسعودﷺ د حلقی په شاګردانو شبهه وکړه چه د

عبد الله بن مسعودﷺ په مخکښې يي ورته وويل: بيشکه نفاق په هغه چا نازل شوې وو چه له تاسو څخه هم بهتر وو؟ !

نو عبد الله بن مسعودﷺ وخندل او د هغه په مقصد پوهه شو، او خپلو شاګردانو ته يي وويل: سبحان الله، بيشکه الله تعالى فرمايي:

﴿إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ فِي ٱلدَّرۡكِ ٱلۡأَسۡفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ﴾ [النساء: ١٤٥].

ترجمه: «بيشکه منافقان به په هغه ډېره لاندينۍ برخه د اور کښې وي».

بيا کله چه مجلس خور شو، نو حذيفهﷺ ابن مسعودﷺ يو شاګرد يزيد بن الأسود النخعي ته وويل: هو، نفاق پداسې خلکو نازل شوې وو چه له تاسو څخه بهتر او غوره وو، بيا هغوئ توبه وويستله، او الله تعالى يي توبه قبوله کړې وه.

او په يو بل روايت کښې داسې دي : هغوئ چه کله توبه وويستله نو هغوئ له تاسو څخه بهتر او غوره شو.

د هغه مقصد دا وو چه ځينې هغه خلک چه د رسول اللهﷺ په وخت کښې منافقان وو، خو بيا يي توبه وويستله او خپل عملونه يي اصلاح کړل، او خپل دين يي په ايمان عمل او اخلاص باندي ښائسته کړ، نو هغوئ بيا د رسول اللهﷺ په صحبت او د هغه سره په جهاد باندي له هغه چا څخه غوره شو چه له صحابه کراموﷺ څخه وروسته وو، يعنی تابعين رحمهم الله، دا

قیصه په صحیح بخاري شریف کښې راغلې ده.

او مؤمنان باید داسې عملونه وکړي چه د منافقت او د هغې له عادتونو او خصلتونو څخه پرې خلاصیږي، لکه بیا بیا توبه ویستل، استغفار ویل، د الله تعالی د حدودو مراعات کول، د هغه د امرونو تعظیم او احترام کول، له شرك او مشرکانو څخه برائت او بیزاري کول، د لمانځه پوره له ټولو حقوقو سره ادا کول، د زکات ورکول، دالله تعالی او د هغه دپیغمبرﷺاو د قرآنکریم او د مسلمانانو د مشرانو او عوامو لپاره خیرخواهي لټول، او په دغه لار کښې خپل پوره کوښښ کول.

همدارنګه له جهاد فی سبیل الله سره محبت او مینه کول، او په زړه کښې یې اراده ساتل، امر بالمعروف او نهي عن المنکر کول، په دین او د حق او پر اتباع باندي او ددین په لار کښې په مصیبتونو باندی یو بل ته سره وصیت کول، او مسکینانو او غریبانو ته په ډوډئ ورکولو یو بل سره تیزول او لاربنوونه کول، او د الله تعالی په لار کښې خرچه او انفاق کول، او هغه په پوره ایمانداری سره ادا کول، او په هغې باندی له الله تعالی څخه د اجر ثواب امید کول، نو په داسې کارونو باندی بنده له نفاق او منافقت څخه پاکیږي.

د عمر بن الخطابؓ په حدیث کښې رسول اللهﷺ فرمایي: «مَنْ سَرَّتْهِ حَسَنَتُهُ وَسَاءَتْهُ سَيِّئَتُهُ فَهُوَ مُؤْمِنٌ».

ترجمه: «څوک چه پخپل نیک عمل خوشحالیږي، او به ګناه کولو باندی خفه کیږي، نو داسی بنده مؤمن دې».

نو که کوم بنده څخه ګناه وشي او هغه په دغه ګناه باندي خفه وو، نو دا ددي خبری نښه ده چه دده ایمان صحیح دې، یعنی ایمان پکښی شته، او له ده څخه داسی امید ډېر دې چه توبه ووباسي، او له الله تعالی څخه ددغه ګناه د بخښنی غوښتنه وکړي، او ځان پری ملامت کړي، خو که څوک په ګناه کولو خوشحالیږي، دا ددي خبری نښه ده چه دده په زړه کښی نفاق او منافقت شته.

په سنن ترمذي کښی د ابوهریره رضي الله عنه په حدیث کښی رسول الله ﷺ فرمایي:

«خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِي مُنَافِقٍ، حُسْنُ سَمْتٍ، وَلَا فِقْهٌ فِي الدِّينِ» [صححه الألبانيُّ].

ترجمه: «دوه عادتونه په منافق کښی سره نه یو ځای کیږي: یو ښه خوي، او بل ددین ښه زده کړه».

## یوولسم درس: له نفاق څخه کرکه او ویرَونه (۳/۳)

**د منافق د منافقت سزا:**

د منافقت د ډیری بدئ له کبله الله تعالی د منافقانو سزا هم په دنیا او آخرت کښې تر ټولو بده سزا ټاکلی ده؛ ترڅو دغه سزا ددوئ د بدو اعمالو پوره جزا شي:

* دنیا کښې خو ددوئ سزا دا ده چه پر زړونو یي مهر ولګول شي، او ددین له پوهی او لارښوونی څخه بی برخی شي، او بیا ورپسی الله تعالی ددوئ په زړونو کښې داسی شکونه واچوي چه ددوئ له زړونو هیڅکله نه ووځي، نو دوئ تر ټولو خلکو ډیر حیران او شکیان وي؛ ځکه دوئ غوښتل چه الله تعالی او مؤمنان تیرباسي، نو ددوئ دغه تیرایستل پر دوئ راوګرزیدل، او د خپل بد عمل بده سزا ورته ورسیده.

نو دوئ چه هرکله د اسلام او مسلمانانو پرخلاف کوم کار کوي او کومه پلمه ورته جوړوي، نو الله تعالی ورته پری ډیره بده او سخته سزا ورکوي، او دوئ په دي هم نه پوهیږي چه مونږ ته دا سزا زمونږ ددغه بد عمل په سبب ده، نو دوئ چه هرڅومره د کفر او منافقت عملونه کوي هغومره ددوئ سزا او عذاب څو چنده کیږي او پرله پسی کیږي.

الله ﷻ فرمایي: ﴿فَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَفۡقَهُونَ ۝٣﴾ [المنافقون: ۳].

ترجمه: «(یعنی هر کله چه دوئ دروغ وایي، او په درواغو قسمونه او سوګندونه هم کوي؛ ځکه چه دوئ یو ځل د ایمان دعوا کړی وه، او مسلمانانو ته یي ځان مسلمان ښکاره کولو، او ددغه ایما له دعوا څخه وروسته یي د خپل منافقت په سبب بیا کافر شول) نو مهر ولګول شو ددوئ پر زړونو باندي، نو لدی کبله دوئ نه پوهیږي».

همدارنګه فرمایي:

﴿أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱشۡتَرَوُاْ ٱلضَّلَٰلَةَ بِٱلۡهُدَىٰ فَمَا رَبِحَت تِّجَٰرَتُهُمۡ وَمَا كَانُواْ مُهۡتَدِينَ ۝١٦ مَثَلُهُمۡ كَمَثَلِ ٱلَّذِي ٱسۡتَوۡقَدَ نَارٗا فَلَمَّآ أَضَآءَتۡ مَا حَوۡلَهُۥ ذَهَبَ ٱللَّهُ بِنُورِهِمۡ وَتَرَكَهُمۡ فِي ظُلُمَٰتٖ لَّا يُبۡصِرُونَ ۝١٧ صُمُّۢ بُكۡمٌ عُمۡيٞ فَهُمۡ لَا يَرۡجِعُونَ ۝١٨﴾ [البقرة: ۱۶-۱۸].

ترجمه: «همدغه کسان اختیار کړی یي ده او غوره کړی یي ده ګمراهي په مقابل د هدایت کښی، نو ګټه ونکړه تجارت ددوئ، او نه دي دوئ سمه لار موندونکي، مثال ددوئ په شان د مثال د هغه چا دې چه بَل کړي اور، نو هر کله چه رڼا کړي دا اور ګرد چاپیر له ده نه، بوځي الله رڼا له دوئ څخه، او پریږدي دوئ په تیارو او تورتمونو کښی چه هیڅ نهویني، کاڼه دي دوئ د حق له اوریدلو څخه، ګونګیان دي دوئ د حق له وینا څخه، ړانده دي دوئ د حق له لیدلو څخه، نو دوئ نه راګرزي حق ته».

همداراز فرمایي:

﴿إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَهُوَ خَٰدِعُهُمۡ﴾ [النساء: ١٤٢].

ترجمه: «بيشکه منافقان تيرباسي الله تعالی لره(ددوئ په ګومان)، او حال دا چه الله به دوئ تيرباسي (په حقيقت کښې)».

دوئ لره د الله تعالی تيرايستل دوئ ته ددوئ د بدو اعمالو له جنسه دوئ ته سزا ورکولو لپاره دي، او دا دوئ ته ددوئ د بدو اعمالو او اقوالو او په الله تعالی باندې د بدګومانۍ سزا ده، همدارنګه ددوئ د هغه کردار او ګومان سزا ده چه دوئ پخپل ګومان الله تعالی ته اومسلمانانو ته تير او دوکه ورکول وو، او د الله تعالی سره د مقابلې او د هغه له دين سره په ډول ډول پلمو او دوکو د جنګ کول وو.

نو دوئ په حقيقت کښې پخپلو دغه بدو اعمالو ځان تيرباسي، لکه چه الله تعالی فرمايي:

﴿يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَمَا يَخۡدَعُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمۡ وَمَا يَشۡعُرُونَ ٩﴾ [البقرة: ٩].

ترجمه: «دوئ (پخپل ګومان) تيرباسي الله تعالی او مؤمنان، خو په حقيقت کښې دوئ نه تيرباسي مګر خپل ځانونه، او دوئ نه پوهيږي».

نو دوئ په دي نه پوهيږي چه دوئ په حقيقت کښې خپل ځان تيرباسي، بلکه ځان ته بې ځايه او باطلې آرزوګانې او اميدونه ورکوي، او د هغې په اميد ځغلي، ترڅو چه دوئ تيروځي او په فتنه کښې پريوځي، او خپل ګناهونه، کفر، فسق او ګمراهي زياتوي، او دا ګومان هم کوي چه ګنې

دوئ ښه کار کوي.

نو دوئ په دي ټولو کښې له خپل ځان پرته بل هیڅ‌چا ته ضرر نه دې رسولې، نه یي الله تعالی ته کوم ضرر رسولې دې، او نه یي د الله رسولﷺ ته کوم ضرر رسولې دې، او نه یي د الله تعالی ددین پیروانو مؤمنانو ته کوم ضرر رسولې دې.

* ددُنیایي سزاګانو څخه یو دا هم ده چه دوئ پخپلو مالونو او اولادونو باندی عذابوي، تردی چه ساګانی یي وخیژي، لکه چه الله ﷻ فرمایي:

﴿وَلَا تُعۡجِبۡكَ أَمۡوَٰلُهُمۡ وَأَوۡلَٰدُهُمۡۚ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُعَذِّبَهُم بِهَا فِي ٱلدُّنۡيَا وَتَزۡهَقَ أَنفُسُهُمۡ وَهُمۡ كَٰفِرُونَ ۝٨٥﴾ [التوبة: ٨٥].

ترجمه: «په تعجب کښې دی نه اچوي تا لره ددوئ(منافقانو) مالونه او اولادونه؛ ځکه په تحقیق الله تعالی غواړي چه دوئ ته په دغه مالونو او اولادونو باندي په دُنیا او آخرت کښې عذاب ورکړي، او ددوئ ساګانی پداسی حال کښې وخیژي چه دوئ کافران وي».

* او ددوئ له دُنیوي سزاګانو څخه دا هم دي چه د خلکو په زړونو کښې ددوئ بغض او کینه واچوي، نو هرڅومره چه دوئ خلکو ته ځان محبوبوي خلك ورسره د محبت او مینی پرځاي بغض او کینه کوي؛ ځکه دوئ د الله تعالی د رضامندئ په بدل کښې د خلکو خوشحالول بهتر ګڼلي وي، او د آخرت په مقابل کښې یي دنیوي ژوند غوره کړې وي، او په هغه څه پسی ډیر ورپسی وي چه الله تعالی په غوصه او قهر کوي، او د الله تعالی

رضامندي بده ګڼي، د الله تعالی له ښوولی لارښوونی څخه مخ اړوي، نو لدي کبله يي خپل ځان بيلابيلو ويرو ګمراهيو او بدبختيو ته وړاندی کړ، کوم چه الله تعالی د هغه چا لپاره ليکلی دې چه د الله تعالی له لارښوونی څخه سرغړونه کوي، الله جلّ جلاله له دوئ څخه د ځينو ډلو په هکله فرمايي:

﴿لَا يَزَالُ بُنۡيَـٰنُهُمُ ٱلَّذِی بَنَوۡاْ رِيبَةً فِی قُلُوبِهِمۡ إِلَّآ أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمۡۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝١١٠﴾ [التوبة: ١١٠].

ترجمه: «تل به وي ددوئ هغه جوړه کړی آبادي چه دوئ جوړه کړی وه (يعنی مسجد ضرار) سبب د شک په زړونو ددوئ کښی، مګر که ټوټه ټوټه شي زړونه ددوئ، او زاره يي ترک وچوي، او الله تعالی خبردار د حکمت خاوند دې».

ځينی مفسرين وايي چه ﴿إِلَّآ أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمۡ﴾ دا استثناء تهکمي ده، چه الله تعالی ددوئ د ټوقو مسخرو په مقابل کښی په دوئ پوری ټوکی مسخری کوي، ترڅو دوئ ته ددوئ د بدو پلمو او مؤمنانو پسی د ټوقو مسخرو پوره سزا ورکړ شي.

دوئ به د مؤمنانو په خلاف داسی پلمی جوړولی چه هغوئ ته په خپل دين کښی شبهی واچوي، او د الله تعالی له سمی لاری څخه يي ګمراه کړي، نو ددوئ سزا هم دا شوه چه په زړونو کښی يي ورته داسی شک واچولو چه تل ترتله ددوي له زړونو څخه نه جلا کيږي، تر دي چه د الله

تعالی مخی ته لاړ شي.

* ددی ترڅنګ دوئ ته ددوئ د ځینو بدو اعمالو په بدل کښې ځینې ځانګړی سزاوی هم رسیږي؛ ځکه الله تعالی ځینو ګناهونو ته ځینې خاصې سزاوی ټاکلی دي؛ ددي لپاره چه هر سرکښه ته د هغه د ګناه په شان او د هغی مطابق سزا ورسیږي.

لکه چه الله ﷻ فرمایي: ﴿ٱلَّذِينَ يَلۡمِزُونَ ٱلۡمُطَّوِّعِينَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ فِي ٱلصَّدَقَٰتِ وَٱلَّذِينَ لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهۡدَهُمۡ فَيَسۡخَرُونَ مِنۡهُمۡ سَخِرَ ٱللَّهُ مِنۡهُمۡ وَلَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝٧٩﴾ [التوبة: ۷۹].

ترجمه: «هغه منافقان چه عیب او طعنی لګوي په خیرات کونکو مؤمنانو باندی د هغوئ د خیراتونو په وخت کښې ، او په هغه کسانو پوری چه نه مومي د خیرات لپاره مګر د خپل کوشش مطابق(د هغی د کموالي په سبب)، نو په هغوئ پوری مسخری کوي، الله تعالی به ددی مسخرو په مقابل کښې په دوئ پوری مسخری وکړي، او ددوئ لپاره دردناک عذاب دې».

نو ددوئ په مؤمنانو پوری د مسخرو سزا ورته الله په دي ورکوي چه الله تعالی ورپوری مسخری کوي، ترڅو ورته د خپل بد عمل پوره پوره سزا ورسیږي.

*منافقان أکثر په هغه ګناهونو کښې واقع کیږي چه د هغی سزا د همغه عمل له جنسه وي، او دغه سزا له آخرت نه مخکی په دنیا کښې وي، لکه چه په متعددو حدیثو شریفو کښې راځي: څوک چه د یو مسلمان په بدنامۍ او

رسوايي پسی ګرځي الله تعالی به يي بدنام او رسوا کړي، او څوک چه يو مسلمان ته ضرر رسوي الله تعالی به د هغی په سزا کښی ورته ضرر ورسوي، او چا چه د يو مسلمان سره مخالفت او دښمنی وکړه، الله به ورته همدغه شان سزا ورکړي، او چا چه يو مسلمان ذليل او کمزورې کړ، الله تعالی به يي ذليل او کمزورې کړي، او چا چه د مسلمانانو سره سختي وکړه، نو په بدل کښی به الله تعالی پر ده باندي سختي راولي.

او منافقان تل د بدو پلمو خاوندان دي، الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَا يَحِيقُ ٱلۡمَكۡرُ ٱلسَّيِّئُ إِلَّا بِأَهۡلِهِۦ﴾ [فاطر: ٤٣].

ترجمه: «او نه چاپيريږي بده پلمه مګر په خپل خاوند باندي، يعنی په هغه چا چه دغه بده پلمه يي جوړه کړی ده».

نو دا چه مخکښی تير شو، د هغه عذابونو ډولونه دي چه منافقانو ته په دنيا کښی رسيږي.

* او هر چه د برزخي ژوند حال دې، نو کله چه دوئ ددُنيا له دي ژوند څخه کوچ وکړي، او په قبرونو کښی کيښوول شي، نو دوئ به په يو لوئ عذاب کښی وي، او هم به په دايمی بدبختی او افسوسونو کښی وي، چه نه ختميږي.

د أنس بن مالكﷺ په حديث شريف کښی رسول اللهﷺ فرمايي:

«إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ وَتَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ وَإِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ أَتَاهُ مَلَكَانِ فَيُقْعِدَانِهِ فَيَقُولاَنِ مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي الرَّجُلِ لِمُحَمَّدٍ فَأَمَّا الْمُؤْمِنُ

فَيَقُولُ أَشْهَدُ أَنَّهُ عَبْدُ اللهِ وَرَسُولُهُ فَيُقَالُ لَهُ انْظُرْ إِلَى مَقْعَدِكَ مِنَ النَّارِ قَدْ أَبْدَلَكَ اللَّهُ بِهِ مَقْعَدًا مِنَ الْجَنَّةِ فَيَرَاهُمَا جَمِيعًا قَالَ قَتَادَةُ: وَذُكِرَ لَنَا أَنَّهُ يُفْسَحُ فِي قَبْرِهِ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى حَدِيثِ أَنَسٍ قَالَ: وَأَمَّا الْمُنَافِقُ وَالْكَافِرُ فَيُقَالُ لَهُ مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ فَيَقُولُ لاَ أَدْرِي كُنْتُ أَقُولُ مَا يَقُولُ النَّاسُ فَيُقَالُ لاَ دَرَيْتَ، وَلاَ تَلَيْتَ وَيُضْرَبُ بِمَطَارِقَ مِنْ حَدِيدٍ ضَرْبَةً فَيَصِيحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا مَنْ يَلِيهِ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ» [متفق علیه].

ترجمه: «بیشکه یو مړ بنده چه په خپل قبر کښی کی کیښودل شي، او ملګري (یعنی هغه ښښوونکي خلک) ورڅخه لاړ شي، نو دې به لا ددوئ د پیزار کړپا او اواز اوري چه دوه ملائکی به ورته راشي، نو هغوئ به یي(په قبر کښی) کښینوي، او ورته به ووایي: ته د هغه سړي په هکله څه وایي چه په تاسو کښی لیږل شوې وو، (یعنی محمدﷺ)».

نو څوک چه مؤمن وي هغه به ورته ووایي: «أشهد أنه عبد الله ورسوله»، یعنی زه ګواهي کوم چه هغه د الله تعالی بنده او استاذې دې.

نو ده ته به وویل شي: په اور کښی دی خپل ځاي ته وګوره ! چه دغه ستا ځاي وو، که مؤمن نه واي، خو چه ایمان دی راوړې دې، نو تا ته الله تعالی د هغی په بدل کښی دغه بل ځاي په جنت کښی درکړې دې، نو هغه به دغه دواړه ځایونه ویني.

او څوک چه منافق او کافر وي، نو هغه ته به وویل شي: تا به په دنیا کښی ددغه سړي په هکله څه ویل؟، نو هغه به ورته ووایي: زه خو نه

پوهیږم، ما هم هغه څه ویل چه نورو خلکو ویل.

نو د ملایکو لخوا به ورته وویل شي: نه دی پوهه شی او نه دی ولولی، او بیا به د اوسپنی په پلْک(ګرز) باندی داسی ووهل شي چه د هغی څخه به یوه داسی چیغه ووهي چه له پیریانو او انسانانو پرته به یي دغلته هر شی اوري.

* او ددی ترڅنګ به ورته ځینی خاص عذابونه هم رسیږي چه د ځینو ګناهونو پوری خاص وي، لکه چه د رسول اللهﷺ څخه په سننو کښی ثابت دي چه هغه څوک چه قرآنکریم لولي او بیایي بیرته پریږدي، او د فرضي لمانځه څخه ویده کیږي، نو هغه به په قبر کښی عذابیږي، همداشان زناکاران، سودخوران، غیبت کونکي، چغلخور، او دروغجن، د زکات منع کونکي، او هغه څوک چه د روژه ماتي له وخته مخکی روژه ماتوي، ددي ټولو په اړه په صحیح احادیثو کښی راغلي دي چه دوئ به په قبرونو کښی عذابیږي، او د منافقانو په دغه بدو اعمالو او د هغی په عذابونو کښی ښه لویه او پوره برخه ده.

* دآخرت عذابونه: په صحیحو احادیثو کښی راغلي دي چه کله د قیامت ورځ شي، او الله تعالی دا ټول خلک په یو میدان کښی د فیصلی او حساب او کتاب لپاره راټول کړي، بیا به خاص کافران ددوزخ اور ته وغورزول شي، او مؤمنان او منافقان او د اهل کتابو څخه ځینی پاتی شوني خلک به په میدان کښی پاتی شي، او هلته به د الله تعالی پنډۍ ښکاره کړل شي، او دغلته به هیڅ داسی څوک پاتی نشي چه په دُنیا کښی به یي پخپله

خوښه د الله تعالی د رضا لپاره سجده کوله، مګر خو هغه ته به اجازه وشي چه دغلته سجده وکړي، او هغه چا چه د ریا، ځان ښودنی او نفاق لپاره سجده کوله د هغه ملا(شا) به یوه تخته شي، هرڅومره چه غواړي سجده وکړي، نو په څټ به راپریوځي.

او د حساب په وخت کښی به منافق راوستل شي، الله تعالی به ورته پر ده باندی خپل کړي نعمتونه وروښاي، نو منافق به ووایي: اي پروردګاره ! ما خو پر تا ایمان راوړې وو، ستا پر کتاب او پیغمبرانو می ایمان راوړې وو، لمونځونه می کول، روژی می نیولی، خیراتونه می کول، او د خپل توانه پوری به د ځان صفتونه وکړي، نو ورته به وویل شي: اوس به نو پر تا باندی یو ګواهي کونکې راولو.

نو منافق به سوچ کوي چه پر ما باندی به دا ګواه لا څوک وي؟ نو پر خوله به يي مهر ولګول شي، او دده ورانه غوښی او هډوکو ته به وويل شي: خبری وکړئ، نو ورون، غوښه او هډوکي به دده پر اعمالو پر ګواهۍ او شاهدۍ ګویان شی، دا هم ددي لپاره چه دده د خپلو اندامونو پر ګواهی دده عذر معذرت ختم شي، او د عذر کولو یا انکار کولو نور فرصت ورته په لاس ورنشي.

نو پیغمبرﷺ دداسی شخص په هکله فرمایي: «وذَلِكَ المُنافِقُ، وذلك الذي يَسْخَطُ اللَّهُ عليه» [رواه مسلم].

ترجمه: «یعنی همداسی شخص منافق وي، او همدا هغه څوک دې چه

الله تعالی ورته په قهر او غُصه دي».

بیا کله چه د دوزخ د پاسه د «صراط» پُل وتړل شي، او پر هغی باندی د تیریدلو حکم وشي، او د قیامت له میدانه هر چا ته د هغه دعمل برابر رڼا ورکړل شي، نو د نورو مسلمانانو په شان به منافقانو ته هم رڼا ورکړل شي تر څو پری په عذاب کړل شي، تردی چه کله دوئ د «صراط» پُل ته ورسیږي، نو د منافقانو رڼا به مړه شي، او د مسلمانانو رڼا به نوره هم پوره او زیاته شي.

الله ﷻ فرمايي:

﴿يَوۡمَ تَرَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ يَسۡعَىٰ نُورُهُم بَيۡنَ أَيۡدِيهِمۡ وَبِأَيۡمَٰنِهِمۖ بُشۡرَىٰكُمُ ٱلۡيَوۡمَ جَنَّٰتٞ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ١٢ يَوۡمَ يَقُولُ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتُ لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱنظُرُونَا نَقۡتَبِسۡ مِن نُّورِكُمۡ قِيلَ ٱرۡجِعُواْ وَرَآءَكُمۡ فَٱلۡتَمِسُواْ نُورٗاۖ فَضُرِبَ بَيۡنَهُم بِسُورٖ لَّهُۥ بَابُۢ بَاطِنُهُۥ فِيهِ ٱلرَّحۡمَةُ وَظَٰهِرُهُۥ مِن قِبَلِهِ ٱلۡعَذَابُ ١٣ يُنَادُونَهُمۡ أَلَمۡ نَكُن مَّعَكُمۡۖ قَالُواْ بَلَىٰ وَلَٰكِنَّكُمۡ فَتَنتُمۡ أَنفُسَكُمۡ وَتَرَبَّصۡتُمۡ وَٱرۡتَبۡتُمۡ وَغَرَّتۡكُمُ ٱلۡأَمَانِيُّ حَتَّىٰ جَآءَ أَمۡرُ ٱللَّهِ وَغَرَّكُم بِٱللَّهِ ٱلۡغَرُورُ ١٤ فَٱلۡيَوۡمَ لَا يُؤۡخَذُ مِنكُمۡ فِدۡيَةٞ وَلَا مِنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْۚ مَأۡوَىٰكُمُ ٱلنَّارُۖ هِيَ مَوۡلَىٰكُمۡۖ وَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ ١٥﴾ [الحدید: ۱۲-۱۵].

ترجمه: «یاده کړه هغه ورځ چه وینی به ته مؤمنان سړي او مؤمنانی ښځی چه منډی به وهي رڼا ددوئ، مخی ته، او ښي طرف ته، او ورته به ویل کیږي: زیرې دې تاسو ته نن ورځی د داسی جنتونو چه د هغی د ماڼیو لاندی

به ویالی بهیږي، او تاسو به په دغه جنتونو کښې همیشه او تل ترتله یاست ، او همدا لویه کامیابي ده. او هغه ورځ چه منافقان سړي منافقانی ښځی به مؤمنانو ته ووایي: مونږ ته لږ راوګورئ او مونږ ته انتظار وکړئ چه مونږ هم ستاسو له رڼا ځینی استفاده وکړو، نو ورته به وویل شي: بیرته شاته وګرزئ(دنیا ته یا میدان حشر ته او )هلته ځانته خپله رڼا ولټوی، نو دلته به ووهل شي او جوړ به شي ددوئ تر منځ یو دیوال، چه دننه به پکښې رحمت وي د مؤمنانو طرف ته، او بهر به تری عذاب وي، منافقان به مؤمنانو ته اوازونه کوي: آیا مونږ له تاسو سره په دنیا کښې نه وو؟ (ځرنګه راځخه جلا شوئ)؟ مؤمنان به ورته ووایي: هو، تاسو په ښکاره له مونږ سره وئ، خو لکن تاسو په فتنه کښې اچولي وو خپل ځانونه(چه ایمان مو د نفاق ایمان وو)، او تاسو به د مؤمنانو د حال انتظار کولو چه دوئ کامیاب کیږي، او که پرې خواري او ذلّت راځي، او له خپله ایمانه په شک کښې ویاست، او خپلو تشو امیدونو تیرایستلی، تر دي چه د الله حکم تاسو ته راغې(مرګ)، او په حقیقت کښې تاسو تیرایستلي یاست تیر ایستونکي شیطان، نو نن ورځ به له تاسو څه فدیه او مالي عوض نه اخستل کیږي، او نه به له نورو خالصو کافرو څخه دغه فدیه ومنل شي، ځاي د ورتللو ستاسو د ټولو اور دې، همدغه تاسو سره مناسب وړ او لایق دې، خو ډیر بد ځاي دورتللو ستاسو دې».

او هر چه ددوئ لپاره په دوزخ کښې کوم عذاب ټاکل شوې دې نو هغه خو یو سپکونکې دردناک او دائمي عذاب دې، الله تعالی ورته په دوزخ

کښې هغه تر ټولو لاندینۍ طبقه ټاکلې ده، نو دوئ په دوزخیانو کښې تر ټولو سخت عذاب والا دي.

الله ﷻ فرمايي: ﴿إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ فِي ٱلدَّرۡكِ ٱلۡأَسۡفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمۡ نَصِيرًا ١٤٥﴾ [النساء: ١٤٥].

ترجمه: «بیشکه منافقان به په آخري لاندینۍ برخه د اور کښې وي، او هیڅکله به دوئ ته ځوک کومکي او مرستندویه پیدا نکړی».

همداراز په بل ځاي کښې فرمايي: ﴿إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡكَٰفِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ١٤٠﴾ [النساء: ١٤٠].

«بیشکه الله تعالی منافقان او کافران په دوزخ کښې ټول سره راټولوي»، او همدا رنګه فرمايي:

﴿وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتِ وَٱلۡكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ هِيَ حَسۡبُهُمۡۚ وَلَعَنَهُمُ ٱللَّهُۖ وَلَهُمۡ عَذَابٞ مُّقِيمٞ ٦٨﴾ [التوبة: ٦٨].

ترجمه: «د منافقانو سړو منافقانو ښځو او خالصو کافرو سره الله تعالی وعده کړی ده چه دوئ به ددوزخ اور ته ننباسي، او همیشه به وي دوي په دغه اور کښې، او همدا اور يي بس او کافي دې، او الله تعالی لعنت کړې دې پر دوئ، او ددوئ لپاره عذاب دې تل ترتله همیشه قائم دائم».

## دولسم درس: د اسلام نواقض او ماتوونکي شيان

مخکښې مو وپيژندل چه يو بنده تر هغه مسلمان کيدې نشي چه ترڅو يي د «لا إله إلاّ الله وأن محمداً رسول الله» شاهدي او ګواهي نه وي کړي، او د خپلې دغې ګواهۍ او اقرار په أساس به الله تعالى يو ګڼـي، او هم به د رسول اللهﷺ پيروي کوي، نو هله به دې مسلمان ګڼل کيږي.

په تيرو درسونو کښې مونږ زده کړل چه د «شهادة أن لا إله إلاّ الله» غوښتنه داده چه د عبادت ټول انواع او ډولونه خاص او يوائې يو الله تعالى ته ځانګړي شي، او د عبادت او بندګۍ اساس او بنسټ د الله تعالى سره پر محبت او دهغه تعظيم او همدغه الله تعالى ته په غاړه ايښوولو باندې ولاړ دې.

همدارنګه مو زده کړل چه د «شهادة أن محمداً رسول الله» غوښتنه هم د رسول اللهﷺ سره د هغه دشان او رسالت سره مناسب محبت کول، هغه په ټولو احکامو او اخبارو کښې رښتينې ګڼل، او د هغه په اوامرو او نواهيو کښې پيروي او اطاعت کول دي.

نو خبردار ! هغه څوک چه ددغه دواړو ګواهيو د ماتوونکو ګناهونو مرتکب کيږي، نو هغه له دين اسلام څخه ووځي، او په الله جلّ جلاله او د

هغه په رسولﷺ باندی کافر ګڼل کیږي، اګر که لمونځ کوي، روژه نیسي، او ګومان کوي چه هغه مسلمان هم دې.

نو هغه څوک چه له دغه څلورو شیانو څخه یو هم ونلري، چه هغه: د عبادت او بندګی یواځی یو الله پوری خاص کول، د الله تعالی سره د هغه دالوهیت او ربوبیت سره مناسب محبت کول، او دهغه تعظیم او هغه ته غاړه ایښودل، همدا شان د رسول اللهﷺ سره محبت کول، هغه په ټولو راوړو احکامو او اخبارو کښی رښتینی ګڼل، او د هغه اطاعت او پیروي کول دي - نو دغه شخص له اسلام څخه ووځي، او مسلمان نه ګڼل کیږي.

بیا که بنده له پیله لا د دواړو ګواهیو دغه غوښتنی نه وي منلی، او په عمل کښی یي نه وي راوستلی، نو دې له همغه پیله اصلي کافر بلل کیږي، که سره له دي دې په ښکاره د مسلمانۍ دعوا هم کوي نو بیا دې منافق دې.

او که چا لومړې د ددواړو ګواهیو دغه غوښتنی منلی وي، او بیا وروسته یي یوه یا له یوي نه زیاتی غوښتنو څخه لاس په سر شي، نو دا مرتد کافر بلل کیږي، چه یو ځل په اسلام کښی شامل شوې او بیرته ورڅخه وتلې دې.

د اسلام دین څخه ارتداد یا مرتد کیدل په هر هغه قول، عمل او اعتقاد باندي کیږي چه په هغی سره د «شَهادةِ أن لا إلٰه إلا اللهُ وأن مُحَمَّدًا رَسولُ الله» له حقیقتونو او غوښتنو څخه د کوم یو انتفا او نشتوالې راځي، او ورسره مناقض او ماتوونکې یي وي.

او دغه نواقض او دین ماتوونکي شیان چه بنده له دین څخه وباسي- ډیر

شکلونه لري، چه کومه خاصه شميره نلري، خو دهغی جامع اصول په لاندی ډول دي:

## لومړۍ ماتوونکې: الحاد:

يعنی د الله تعالی له وجود او شتون څخه انکار کول، لکه د مخلوقاتو د پيدايښت نسبت طبيعت ته کول، يا دا عقيده لرل چه دا عالَم او کوْن قديم دې، په دی معنی چه څينی مخلوقات اول نلري، يعنی ازلي دي.

## دوهم ماتوونکې: شرک اکبر (لوئ شرک):

او هغه دا چه د الله تعالی لپاره شريک او يا سيال ومنل شي، او دا بيا په څو ډوله دې:

**لومړې ډول:** په عبادت او بندګی کښی شرک کول، چه د عبادت او بندګی کوم ډول او نوعه د الله تعالی پرته بل چا ته هم وشي، لکه دغير الله دعاء، رابلل، د غير الله په نوم حلالکه او ذبح کول، او د هغه لپاره نذر اومنښته منل، له غير الله څخه مرسته او کومک او مدد غوښتل، غير الله ته چيغه او رامددشه ويل، په غير الله باندي استعاذه او پناه غوښتل- کوم چه مافوق الأسباب امورو کښی وي-، او داسی نور.

د شرک فی الألوهيت يو شکل هغه دې کوم چه يي بُت پرستان د انبياؤ، اولياؤ عبادت او پرستش کونکي کوي، لکه د بُتانو، انبياؤ اولياؤ رابلل، او ورته چيغه او رامددشه ويل، له هغوئ څخه سفارش غوښتل، ورڅخه د خپلو

ډول ډول حاجتونو غوښتل، ګټه غوښتنه او ضرر دفع کول، او له هغه څخه بچ کول غوښتل، نو هغه څوک چه دغه کارونه کوي هغه بنده مشرک او کافر بلل کیږي، اګر که هغه پخپل ځان د مسلمان ګومان کوي او دعوا يې کوي، او ورسره «لا إله إلاّ الله» وایي، لمونځ کوي، خیراتونه کوي، روژی نیسي، حج کوي او نور د خیر کارونه کوي؛ ځکه شرک اکبر هر نیک عمل بربادوي او ابته کوي يې؛ ځکه شرک اکبر د اسلام دین بلکل منافي او ضد دې.

**۲/ بل شکل يې هغه دې کوم چه يې ساحران کوډګر،** او هغه خلک چه دوئ ته ورځي - کوي يې، لکه: د غیر الله په نوم ذبح او حلالکه کول، له غیر الله څخه مرسته او کومک غوښتل، او شیطانانو څخه مرسته او کومک غوښتل.

**دوهم ډول: د الله تعالی په ربوبیت کښې شرک:** یعنی د الله تعالی سره د هغه په افعالو او خدائي کارونو کښې شریک او برخمن منل، او ورسره بل څوک سیال ګڼل، لکه چه ځینی مشرکان په خپلو معبودانو او مشرانو کښې دا اعتقاد لري چه دوئ په کوْن کښې تصرف کولې شي، او یا پر غیبو باندي علم لري او پری پوهیږي، او یا هم د باران کولو اختیار لري، یا د چا رزق روزي ورکولو اختیار او واک لري، او یا هم له مرض او رنځ څخه روغتیا ورکولې شي، یا اولاد او بچي ورکولې شي، یا بی واده شخص ته د ژوند ملګرې بخښي، یا چا ته مال او شتمني ورکولې شي، او یا هم تکلیفونه او

سختۍ لرې کوي، او مصیبتونه او بلاګانې پورته کوي، او یا حاجتونه پوره کوي، او که څوک یې رابلي نو دُعا او زاري یې قبلوي، او په درد یې ورځي.

بل شکل یې هغه دې چه ځینې خلك لکه مجوس چه عقیده لري چه ددې کون او عالم دوه پیداکونکي دي: یو رڼا، او بل تیاره او تورتم.

دریم شکل هغه دې لکه چه ځینې صوفیان او شیعه ګان یې د خپلو مشرانو په هکله عقیده لري چه هغوئ په غیبو پوهیږي، او په کون کښې تصرف کولې شي، او دچا دُعا او رابلل قبلولې شي، او حاجتونه او ضرورتونه یې پوره کولې شي.

بل شکل یې: د الله تعالی د رالیږل شوي وحي نه پرته د مخلوق په جوړ شوو قوانینو باندې فیصلې کول، نو څوک چه د الهي وحي پرته په نورو قوانینو فیصلې کوي هغه طاغوت دې، او په دغه فیصلو ځان دالله تعالی سره په فیصلو کښې شریك او برخمن ګڼي.

**دریم ډول شرك د اطاعت او پیروئ شرك دې**، او هغه دا چه بنده حِل او حرمت کښې له اسلامي شریعت پرته د خپلو مشرانو پیروي وکړي، چه هغوئ ته یې غوږ نیولې وي: کوم چه هغوئ ورته حلال وایي، ددوئ په نیز هم حلال، او کوم ته چه دغه مشران حرام وایي نو ددوئ په نیز هم حرام وي، لکه چه د طواغیتو پرستش کونکي یې کوي، چه په حِل او حرمت کښې د خپلو طواغیتو اطاعت او د هغوئ پیروي کوي، چه د الله تعالی حرام

کړیو ته حلال، او د الله تعالی حلال کړیو ته حرام وايي، اوددي هم ډیر شکلونه دي، چه له هغی ځخه:

یو شکل دا دې چه ځوک طواغیتو ته فیصلی او وروړي، نو ځوک چه پخپله خوښه او خپله اراده هغوئ ته خپلی منازعی او لانجی د حل او فصل لپاره وروړي، او دهغوئ فیصلی غواړي چه پلی شي، دا بنده کافر بلل کیږي؛ ځکه چه الله ﷻ فرمايي:

﴿أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزۡعُمُونَ أَنَّهُمۡ ءَامَنُواْ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبۡلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدۡ أُمِرُوٓاْ أَن يَكۡفُرُواْ بِهِۦۖ وَيُرِيدُ ٱلشَّيۡطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمۡ ضَلَٰلَۢا بَعِيدٗا ٦٠﴾ [النساء: ٦٠].

ترجمه: «آیا ته نه ګوری هغه خلکو ته چه ګومان کوي چه دوئ ایمان لري په هغه وحي چه تا ته لیږل شوی ده -اي محمدﷺ- او هم ایمان لري په هغه کتابونو چه له تا ځخه مخکنیو پیغمبرانو ته لیږل شوی وه، او سره له دي هم غواړي چه خپلی فیصلی طاغوت ته یوسي، حال دا چه دوئ ته دا حکم شوې دې: چه کفر وکړي او انکاري شي پر دغه طاغوت او د هغه پر فیصلو، خو شیطان غواړي چه دوئ له حق ځخه په ډیری لری ګمراهی او بی لارئ ګمراه او بی لاري کړي».

یادونه: هو، هغه ځوک چه په داسی هیواد کښی اوسي چه هلته د الله تعالی په رالیږل شوي وحي باندي فیصلی نه کیږي، او دغه اوسیدونکې له خپله ځانه د ظلم په رفع او یا ورځخه په خلاصی کښی، او یا دخپل حق په

لاس ته راوړلو کنبی– دي ته اړ شو چه ځینی هغه محکمو ته خپل شکایت او فیصله وروړي چه دې ګومان کوي چه دده حق به ورته وروسپاري، او یا به ظلم ورڅخه پورته کړي، نو په دغه وخت کنبی دا بنده نه کافر کیږي؛ ځکه رسول اللهﷺ چه کله خپلو صحابه کرامو ته د حبشی په لوری د لومړني هجرت کولو اجازه وکړه نو ورته یي وویل: «إنَّ بأرضِ الحَبَشةِ مَلِكًا لا يُظْلَمُ أحَدٌ عندَه، فالْحَقُوا ببلادِه حتى يَجْعَلَ اللهُ لكم فَرَجًا ومَخْرَجًا مِمَّا أنتم فيه» [رواهُ البَيْهقِيُّ من حديثِ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنها بإسنادٍ حَسَنٍ].

ترجمه: «بیشکه د حبشی هیواد کنبی داسی پاچا دې چه د هغه په حکومت پر هیچا ظلم نه کیږي، نو هلته لاړ شی، ددی لپاره چه الله تعالی یي ستاسو لپاره د هغه مشکلاتو څخه چه تاسو پکنبی یاست – د خلاصی سبب وګرزوي».

ځکه نجاشي لا پدغه وخت کنبی مسلمان شوې نه وو، خو سره له دي که پر دوئ کوم ظلم شوې واي، او دوئ نجاشي ته فیصلی وروړلو ته اړ شوي واي نو نجاشي به ورسره له انصاف او عدل څخه کار اخستې وو، نو دا ددي دلیل دې چه په هغه هیوادونو کنبی چه اسلامي نظام نه وي، خو که یو مسلمان ورته فیصله وروړي نو عدل او انصاف به ورسره وشي، او له ظلم څخه به خلاص شي – روا ده چه خپله فیصله او عرض ورته وروړي.

ځکه مسلمان د ضرورت او حاجت په وخت کنبی چه که ورنشي نو مصلحت یي فوت کیږي– نو هغه په حقیقت کنبی طواغیتو ته د فیصلو

ورروړلو غوښتونکې نه دې، نو په دی اساس هغه په دغه وخت کښی نه کافر کیږي.

دوهم شکل: په اسلامي شریعت کښی د بیان شوو حلالو په تحریم او همدغه شان په شریعت کښی د واضحو حرامو په تحلیل کښی د بی دینه علماؤ او طاغوتو حاکمانو اطاعت او پیروي کول.

دشرك افراد او شکلونه بیخي ډیر دي، خو ټول همدی دریو ډولونو ته راګرزي.

## دایمان او اسلام دریم ډول ماتوونکې:

د الله جلّ جلاله د بعض ځانګړو صفتونو دعوا کول، که هغه په ربوبیت کښی وي، او که په الوهیت کښی وي، او که په اسماء او صفاتو کښی وي.

ددي ناقض ځینی شکلونه:

۱/ د ځینی طواغیتو خپل عبادت او بندګی ته بلنه ورکول.

۲/ د علم غیب دعوا کول.

۳/ د مړو د ژوندي کولو دعوا کول.

## دایمان او اسلام څلورم ماتوونکې: د نبوت او پیغمبرۍ دعوا کول.

د نبوت او پیغمبرۍ دعوا کول د علماؤ په اجماع باندی کفر شمیرل کیږي.

د نبوت او پیغمبرۍ پوری ځینی تړلي شیان چه همدغه حکم هم اخلي:

* لکه د قرآنکریم سره مشابهت او دا دعوا کول چه د هغه کتاب په شان بل کتاب راوړلی شي کوم چه الله تعالی په خپلو پیغمبرانو رالیږلي دي، لکه چه الله تعالی فرمایي:

﴿وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوۡ قَالَ أُوحِيَ إِلَيَّ وَلَمۡ يُوحَ إِلَيۡهِ شَيۡءٞ وَمَن قَالَ سَأُنزِلُ مِثۡلَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُۗ﴾ [الأنعام: ۹۳].

ترجمه: «او څوک دې ډیر لوئ ظالم له هغه چا چه جوړ کړي په الله تعالی باندی دروغ، او یا ووایي: چه ما ته هم وحیی شوی ده، حال دا چه د هیڅ شي وحیی ورته نه وي شوی، او هغه څوک چه ووایي: ژر دې چه زه به نازل کړم یو کتاب په شان د هغه کتاب چه الله تعالی رالیږلې دې».

## د ایمان او اسلام پنځم ماتوونکې: د الله تعالی او د هغه دپیغمبرﷺ دروغجن ګڼـل:

نو هغه څوک چه الله ﷻ او یا د هغه رسول ﷺ دروغجن ګڼـي، داسی بنده د علماؤ په اجماع باندی کافر دې، او له مسلمانانو څخه نه شمیرل کیږي.

ددی ماتوونکي ځینی شکلونه:

۱/ د اسلام د غټو او ښکاره شعائرو نه انکار کول، لکه د زکات یا لمانځه د فرضیت څخه انکار کول، یا د سود، زنا، او خنزیر غوښی د حرام والي څخه انکار کول.

۲/ د الله تعالی د نومونو او یا صفتونو څخه د کوم یو څخه بی شبهی او ناپوهی

او تأویل څخه انکار کول.

۳/ د قرآنکریم د کوم آیت یا کومی مسألی څخه انکار کول.

۴/ په قرآنکریم کښی د تحریف یا اختلاف او تناقض دعوا کول.

۵/ د نبوي احادیثو څخه انکار کول.

۶/ له مرګه وروسته د بیا راژوندي کیدلو او یا د سزا او جزا او حساب او کتاب څخه انکار کول.

۷/ هغه چا ته کافر نه ویل ځوک چه د اسلام دین ته خپل دین نه وایي، اود اسلام مقدس دین ته غاړه نه ږدي، لکه یهود، نصارا، مجوس، ملحدین، او بُت پرستان.

۸/ دا عقیده لرل چه یو چا ته د محمدﷺ له شریعت څخه وتل روا دي، لکه خضر الکلیه ته چه د موسی الکلیه له شریعت څخه د بل شریعت پیروي روا وه.

۹/ په صحیح دلیل باندی دحرام شوي شیانو بی شبهی او بي تأویله حلال ګڼل.

۱۰/ ځوک چه د محمدﷺ څخه وروسته د نبوت دعوا وکړي هغه رښتینې ګڼل.

۱۱/ دا عقیده اودعوا کول چه د محمدﷺ رسالت یوائی د عربو لپاره خاصه ده.

۱۲/ داسی دعوا کول چه که ځوک د الله تعالی پرته بل چا ته- که هغه ځوک نیک صالح بنده وي او که بل ځوک- چیغه وهي او یا یي خپلو حاجتونو

پوره کولو لپاره رابلي نو الله تعالی پری رضا دې.

۱۳/ أم المؤمنین عائشی رضي الله عنها ته ښکنځل کول، او په هغه تهمت یي بدنامول چه الله سبحانه وتعالی ورځخه په سورت نور کښی د هغی براءت او پاکي بیان کړی ده، او یا هم نورو امهات المؤمنین د رسول الله ﷺ بیبیانو ته دغه شان نسبت کول، نو هم کافر کیږي او د اسلام له مقدس دین ځخه بیرون او وتلې شمیرل کیږي.

او ټول هغه څه چه په هغی سره د الله تعالی او د هغه درسول ﷺ دروغجن ګڼلو ته لار جوړیږي هغه نو د اسلام او ایمان له نواقض او ماتوونکو شیانو ځخه شمیرل کیږي.

خو په دي باید پوهه شو چه د یو خبر دروغ ګڼلو سبب کله دا وي چه یو بنده سره په دغه خبر باندی دلیل نه وي، یا دلیل وي خو ده ته دغه دلیل ورمعلوم نه وي، او یا ورسره ددغه دلیل په ثبوت کښی شک وي، او یا ورسره د دلیل په معنی کښی داسی تأویل وي چه له ده ځخه د تکذیب او درغجن ګڼلو حکم تری اوړی.

خو که هغه خبر او مسأله چه معنی او ثبوت یي معلوم او ښکاره وي، او بیا ورځخه څوک انکار کوي او دروغ یي ګڼي، نو دی وخت کښی دا دعلماو په اتفاق تکذیب او د دیني شعایرو دروغجن ګڼل کیږي.

او په لومړني حالاتو کښی دروغجن ګڼونکی باندی د کفر حکم نه کیږي، ترڅو چه حجت ورباندی قایم شي، او ورباندی پوهه شي او د خبر ثبوت او د معنی صحت ورته ځرګند شي.

## د ایمان او اسلام شپږم ناقض او ماتوونکې: شک:

شک د هغه تصدیق سره منافي او ضد دې چه پر مسلمان باندی یي تصدیق کول فرض دي، نو که څو د الله تعالی او یا د هغه د رسولﷺ په خبرو کښی شک وکړي، دغسی بنده کافر او نا مسلمان بلل کیږي، نو شک هم لکه د تکذیب او دروغجن ګڼلو په شان د تصدیق سره منافي او ضد دې.

### د شک ډیر صورتونه کیدې شي:

۱/ لکه هغه څوک چه اسلام خپل دین نه ګڼي، او بیا هم څوک د هغه په کفر کښی شک کوي.

۲/ له مرګه وروسته په بیا راژوندي کیدلو کښی شک کول.

۳/ د قرآنکریم په ثبوت، یا له تحریف او تبدیل څخه د الله تعالی لخوا د هغه په حفظ کښی شک کول.

## د ایمان او اسلام اووم ماتوونکې: د الله تعالی او د هغه درسول او اسلام سره کینه.

د الله تعالی یا د هغه د رسول محمدﷺ سره او یا د اسلام مقدس دین سره بغض او کینه کول د هغه د محبت سره منافي او ضد دې، نو هغه څوک چه د الله تعالی یا د هغه د رسولﷺ او یا د اسلام دین سره بغض او کینه کوي، داسی بنده کافر او له اسلام دین څخه بهر وتلې شمیرل کیږي.

په دغه بغض او کینه پوری اړوند او تړلی نور مسایل:

۱/ الله ﷻ ته یا د هغه رسول محمدﷺ ته یا د اسلام مقدّس دین ته ښکنځل

کول، د الله جلّ جلاله په ذات کښې یا د رسول اللهﷺ په ذات کښې طعن او د عیبونو لګول.

۲/ د رسول اللهﷺ د صحابه کرامو رضي الله عنهم سره بغض کول، او یا هغوئ ټولو ته ښکنځل کول، او یا هغوئ ته کافران ویل، دا ټول د ایمان او اسلام ماتوونکو شیانو څخه شمیرل کیږي.

هو، که څوک ځینو صحابه کرامو ته د کومې شبهې له کبله بد وواییي، نو هغه په دې وخت کښې کافر نه بلل کیږي، البته د یو لوئ حرام کار مرتکب بلل کیږي.

۳/ ددین له امامانو سره، د صحیحو حدیثو شریفو له نقل کوونکو سره، یا ددین له نورو مشرانو سره په عمومي ډول بغض او کینه کول، او یا د هغوئ دروغجن ګڼل هم د ایمان او اسلام ماتوونکو شیانو په شمار کښې راځي.

## د ایمان او اسلام اتم ماتوونکې: په الله تعالی او د هغه په رسولﷺ پورې مسخرې او ټوقې کول:

او دا هم لوئ کفر بلل کیږي؛ ځکه دا کار هم د هغه فرضي محبت او تعظیم سره منافي او ضد دې چه په مؤمن باندي د هغه د ایمان له غوښتنو څخه دي.

په دې ماتوونکي او ناقض پورې اړوند نور ایمان او اسلام ماتوونکي شیان:

۱/ د قرآنکریم سپکه او بې عزتي کول:

۲/ د اسلام له شعایرو څخه د کومې یوې سپکه او بې عزتي کول.

**دایمان او اسلام نهم ناقض او ماتوونکې: د مؤمنانو پرته د کفارو سره دوستي کول، او په دي کښې دوه کاره شامليږي:**

۱/ د هغوئ سره ديني محبت او مينه کول، او يا د هغوئ سره د هغوئ پر دين موافقه کول، او پر هغی باندی راضي کيدل.

۲/ د مسلمانانو پر خلاف د کفارو سره کومک او مرسته کول.

ددی ناقض مختلف صورتونه دي:

۱/ د کافرانو لپاره پر مسلمانانو جاسوسي کول.

۲/ کافرانو ته د هغوئ په کفري او بُت پرستی اخترونو او جشنونو باندی مبارکي ويل؛ کله چه دا کار د هغوئ په شرک او کفر باندی يو ډول خوشحالي او رضامندي وي.

خو که له هغوئ سره صِرف ددي لپاره د هغوئ په جشنونو کښی ګډون کوي چه يو څه وخوري، ځان موړ کړي، او د هغوئ سره په هغه حرامو باندی چه هغوئ پکښی وي، او هغوئ سره دي، لذت تری واخلي او ساعت تيري ورسره کوي، سره له دي چه پر زړه د هغوئ د کفر او شرک څخه منکر وي، او له کفر او شرک څخه بد وړي، نو شک نشته چه دي د هلاکت په څنډه ولاړ دې، او ډيره ويره پری شته چه پر ده هم هغه عذاب راشي کوم چه په کفارو باندي راځي، البته کافر او مشرک نه ګڼل کيږي.

۳/ دداسی عبادتګاهونو جوړول چه هلته د الله تعالی پرته د بل چا عبادت او بندګي کيږي، او يا په دغسی کار کښی يو څه اندازه يا په يو ډول برخه اخستل،

لکه د یهودو نصاراو مجوسو او نورو کفارو عبادتخانی جوړول، د هغه قبرونو او زیارتونو باندی کوټی او دکانچی او داسی نور شیان جوړول چه د هغی قبرونو او زیارتونو او یا هلته د غیر الله عبادت او بندګي کیږي.

۴/ د اسلامي شریعت د علمبردارو علماو او دعاتو سره مقابله کول، او د هغوئ مخه نیول، او د هغوئ تنګول او زورول؛ ترڅو ددغی لاری نه د اسلامي دعوت مخه ونیول شي.

۵/ د مسلمانانو د سپکاوي او کمزوري کولو لپاره کوښښ او منډی ترړی کول، او پر مسلمانانو باندی د کفارو د مسلّط کولو په لار کښی مرسته کول.

## د ایمان او اسلام لسم ماتوونکې: د الله تعالی اودهغه د رسول له اوامرو څخه سرغړونه:

هغه څوک چه د اللهﷻ او د هغه د رسولﷺ له اطاعت او پیروئ څخه سرغړونه کوي هغه مسلمان نه دي؛ ځکه ده په حقیقت کښی د الله تعالی دین ته غاړه ایښی نه ده، او هغه یي نه دې منلې، ځکه خو هغه فرایض نه ادا کوي، او نه هم له محرماتو څخه ځان ساتي، مګر هغه شیان مني چه دده د نفسي خواهش سره موافق او ورته خوښ وي.

### ددی سرغړونی ځینی شکلونه:

۱/ لکه هغه څوک چه عقیده لري چه د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ اطاعت او پیروي او هغوئ ته غاړه ایښودنه پری لازمي نه ده، او نه پری د الله تعالی او دهغه د رسولﷺ د امر منل فرض دي.

۲/ یا هغه څوک چه د الله تعالی او د پیغمبرﷺ له حکم منلو څخه بشپړه سرغړونه وکړي، چه نه اسلامي دین زده کوي، او نه د هغه مسألو پوښتنه کوي چه پرې فرض دي، لکه د الله تعالی او د هغه درسولﷺ اطاعت، او نه فرایض او واجبات ترسره کوي، او نه د الله تعالی او د هغه درسولﷺ د حکم منلو له کبله له حرامو څخه ځان ساتي.

هو، هغه څوک چه په اصل کښی د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ د اطاعت فرمانبردار او ورته غاړه ایښودونکې وي، خو کله کله ورڅخه ځیني ګناهونه کیږي، نو داسی بنده ددغسی ګناهونو له کبله نه کافر کیږي.

## په دی ایمان ماتوونکي څیزونو پوری ځینی اړوند مسایل:

لکه د لمانځه پریښودل؛ ځکه لمونځ ته په اسلام کښی د دین د ستن لقب ورکړ شوې دې، نو که یو بنده لمونځ بیخي پریږدي، هغه بیا د الله تعالی له دین څخه سرغړوونکې شمیرل کیږي، لکه چه د اسلام دوهم خلیفه عمر بن الخطابؓ فرمایي: «څوک چه لمونځ پریږدي اوضایع کوي یي، نو هغه ددین د نورو رکنونو په ضایع کولو کښی ډیر زړور دې».

دا لس ایمان او اسلام ماتوونکي شیان په اصل کښی د کلمهٔ شهادت سره بشپړ منافات او ضدیت لري، نو هغه مسلمان عاقل بالغ چه پخپل اختیار او خوښه پرته له کوم عذر او شبهی نه ددغه نواقضو او ماتوونکو مرتکب شي، داسی بنده کافر او له اسلام څخه مرتد بلل کیږي، که په همدغه حال بی توبی مړ شي، دې به د دوزخ په اور کښی تل ترتله او همیشه لپاره وي،

لکه چه الله ﷻ فرمايي: ﴿وَمَن يَرۡتَدِدۡ مِنكُمۡ عَن دِينِهِۦ فَيَمُتۡ وَهُوَ كَافِرٞ فَأُوْلَٰٓئِكَ حَبِطَتۡ أَعۡمَٰلُهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ٢١٧﴾ [البقرة: ۲۱۷].

ترجمه: «او هغه څوک له تاسو څخه أي مسلمانانو چه مرتد شو له دين خپل نه، او بيا مړ شو په داسې حال کښې چه هغه کافر وي، نو دغسې کسان برباد او ابته دي نيک عملونه ددوئ په دُنيا او آخرت کښې، او همدوئ ددوزخ د اور والا دي، چه دوئ به په دغه اور کښې هميشه او تل ترتله وي».

او هغه څوک چه په باطن کښې ددغه ټولو يا د ځينو نواقضو مرتکب شي، او په ښکاره دې د اسلام دعوا کوي، نو داسې بنده له منافقينو څخه شميرل کيږي چه نفاق يې نفاق اکبر او لوئ نفاق وي، مسلمانان به ورسره په ظاهر او ښکاره د مسلمانانو معامله کوي، او پټ او د زړونو نفاق به يې الله تعالى ته سپاري، تر هغه چه له دوئ څخه ورته ښکاره کفر څرګند شي.

## او دغه نواقض دوه درجې لري:

### لمړئ درجه: ښکاره او څرګند کفر:

او دا هغه کفر دې چه ددغسې کافر په کفر کښې هيڅ ډول شبهه او شک نه وي، او نه ورته کوم عذر وي، لکه ناپوهي، تأويل، او يا زور او جبر، لکه هغه څوک چه ځان د اسلام دين پرته بل کوم دين ته منسوبوي، او يا د الله تعالى پرته د بل چا عبادت او بندګي کوي، او يا الله تعالى او د هغه رسول ﷺ ته ښکنځل

کوي، او په دین پوری ټوقی مسخری کوي، او یا له قرآنکریم او یا له نبوي سنتو او احادیثو شریفو څخه انکار کوي، او ددین له ښکاره او څرګندو شعایرو او نښو څخه انکار کوي، سره له دي چه ده ته پری علم او پوهه وي.

نو ددی درجی والا خلکو باندی د کفر حکم کولې شي، او هم دا چه دوئ به په آخرت کښی په اور کښی وي –که په همدغه حالت باندی مړه شي، او توبه ورڅخه ونه باسي–، الله جلّ جلاله فرمایي:

﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَن يَسۡتَغۡفِرُواْ لِلۡمُشۡرِكِينَ وَلَوۡ كَانُوٓاْ أُوْلِي قُرۡبَىٰ مِنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمۡ أَنَّهُمۡ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَحِيمِ ١١٣﴾ [التوبة: ۱۱۳].

ترجمه: «مناسب نه دي پیغمبر ته او مؤمنانو ته چه استغفار او د ګناهونو بخښنه وغواړي د مشرکانو لپاره، اګر که ددوئ خپلوان هم وي، وروسته له هغه چه دوئ ته څرګنده شي چه دوئ ددوزخ والا دي، یعنی په کفر باندي مړه او کافران له دنیا تللي دي».

**دوهمه درجه: هغه ده چه ښکاره او څرګند کفر نه وي، نو هغه بیا په دوه ډوله دې:**

لومړې: دا چه ددغه ګناه کونکي لپاره پکښی د عذر احتمال وي، لکه زور او جبر، د عقل نشتوالې، شبهه: لکه تأویل او ناپوهي، نو په دي حال کښی باید په ده باندی حجت قایم شي، یعنی کوم تأویل چه هغه یي کوي، خطا یي ورته بیان کړل شي، او که ناپوهه وي نو پوهه کړل شي، که عذر یي لری شو، او سره له دي یي هم په خپله دغه ګناه باندي اصرار او استمرار وکړ، نو په دی حالت کښی هم

په ده باندي د کفر حکم کیږی ځکه دې په دی حالت کښی په لومړني درجی ته ورګرزي، او که عذر یي لری شوې نه وي، نو بیا پری د کفر حکم نه کیږي.

له همدي کبله د اهل سنت والجماعت امامان په هغه ګمراه او بی لاری ډلو او د هغوئ په پیروانو د کفر حکم نه کوي چه د الله تعالی له اسماء او صفاتو څخه د کومی شبهی او تأویل له کبله منکر وي، سره له دي چه په هغوئ باندي د بدعت او فسق حکم کوي، او دا ورته بیانوي چه ددوئ دا شبهی او تأویل دوئ ته د مخالفت براءت او جواز نه ورکوي، یواځی له دوئ څخه د کفر حکم منع کوي.

ددی نوعی حکم دادی چه دغه عمل او کار کفر دې، خو معین او مشخص مرتکب ددی عمل او ګناه باندی د کافر حکم نه کیږي، تر هغه پوری چه د کفر شروط پکښی موجود شي، او موانع یي لری شي.

**دوهم ډول:** چه دغه ناقض او ایمان ماتوونکې کښی د علماو خلاف وي، او کتونکي باندي پکښی شبهه او اشتباه راځي او ترجیح پکښی نشي کولې، ځکه په ځینو نواقضو کښی د علماو ترمنځ اختلاف دې، لکه:

۱/ د لمونځ د سستئ له کبله پریښودل، سره له دی چه دا پریښودونکې یي له فرضیت څخه انکار نه کوي، او نه د لویي او تکبر له کبله دغه لمونځ پریږدي، بلکه د لمونځ پریښودل یي یواځی د سستئ او لټـی له کبله وي.

په دی مسأله کښی زمونږ په نظر صحیح خبره دا ده چه څوک لمونځ سراسر پریږدي، نو هغه کافر کیږي، او هغه څوک چه کله لمونځ کوي او کله یي

پریږدي، نو داسی بنده د فرایضو په ادا کښی د کوتاهۍ له کبله فاسق شمیرل کیږي، او د سخت عذاب ویره پری ده؛ البته د کفر حکم پری نشي کیدلی.

همدا متوسط او درمیانه نظر دې، ځکه په دي کښی دوه نور نظرونه دادي چه:

۱/ که څوک یو لمونځ هم پریږدي نو کافر کیږي.

۲/ دوهم نظر دا دې چه که لمونځ بیخي پریږدي نو هم نه کافر کیږي.

دوهم خلافي مسأله: سحر، کوډی کباړی:

په دی مسأله کښی هم علماء سره په یو نظر نه دي، چه آیا هغه څوک چه سحر او کوډی زده کوي، نورو ته یي ورزده کوي، او سحر او کوډی کوي، نو آیا داسی بنده کافر کیږي او کنه؟

نو دلته هم صحیح خبره داده چه سحر او کوډی تر هغه پوری تأثیر نه کوي چه په هغی کښی کفر، شرک نه وي، او له شیطانانو څخه پکښی مرسته او کومک نه وي غوښتل شوی، او دغه شیطانانو ته پکښی په ذبح حلالکه، نذر او منښته نه وي منل شوي، او د اسلامي شعایرو ته پکښی سپکاوې نه وي شوی، اوددغه ټولو کارونو کونکې د علماو په اتفاق باندي کافر بلل کیږي.

لکن ځینی علماء ځینو پټو چلونو (د لاسونو تیزئ او چالاکی) ته، او نورو چلوټو ته هم سحر وایي، او ځینی علماء هغه څه ته هم سحر وایي چه ځینی خلک یي د ځینی تأثیرونو لپاره ځینی دواګانی چه د انسان په عقل، نفس او پوهه باندی تأثیر کوي؛ نو لدي کبله هر ساحر ته کافر نه وایي، بلکه د هغه له سحر او

کوډو څخه استفسار او پوښتنه کوي چه څه ډول سحر کوي؟

نو که بيا په سحر کښې له شيطانانو څخه مرسته او کومک غوښتل شوې وو، او يا ورته تقرب او عبادت او بندګي شوی وه، نو دغه سحر ته کفر وايي، او که په دغه سحر کښې د الله تعالى پرته بل چا ته تقرب او عبادت او بندګي نه وي نو بيا ورته کفر نه وايي، بلکه په هغه باندی تعزيري داسې حکم کوي چه هغه له دغه کارونو هم بند کړي، خو د کفر حکم پرې نه کوي، او کافر ورته نه وايي.

۳/ د زکات، روژې او حج پرېښودل:

په دې درې مسألو کښې هم د ځينو علماو نظر دا دې چه څوک له دوئ څخه هر يو فرضي عمل پرېږدي، نو هغه کافر کيږي، اګر که د فرضيت څخه يې منکر نه وي.

خو صحيح خبره دلته هم دا ده چه تر هغه پورې ددې اعمالو تارک او پرېښودونکې ته کافر نه ويل کيږي چه ددوئ له وجوب او فرضيت څخه منکر نه وي، نو که له فرضيت څخه يې منکر شو، په دغه وخت کښې به کافر وي؛ ځکه دې وخت کښې دې د الله تعالى او د هغه د رسولﷺ مکذّب او دروغجن ګڼونکې شو؛ او څوک چه د الله تعالى او د رسول اللهﷺ مکذّب وي هغه کافر وي.

او په متعددو صحيحو احاديثو شريفو کښې راغلي دي چه ددغسې فرضي اعمالو تارک او پرېښودونکي ته به په آخرت کښې عذاب ورکول کيږي، بيا به وروسته ورباندې فيصله کيږي: چه يا به جنت ته ځي، او يا به اور ته ځي، نو دا

ښکاره دلیل دې چه ددغه اعمالو تارک او پریښودونکي باندي د کفر حکم یقیني نه دې.

دلته د یادونی وړ ده چه ځینی هغه اعمال چه بنده پری کافر کیږي او له دین څخه پری ووځي، کله کله پکښی له یوه څخه زیات د ایمان او اسلام ماتوونکي اسباب راجمع کیږي، نو دغه عمل د کفر سبب وي، خو د مختلفو وجوهو نه.

لکه هغه څوک چه د الله تعالی له رالیږلی وحیی پرته په بشري جوړو اووضعي قوانینو باندی فیصلی کوي، او دا کار ځان ته روا هم بولي، بلکه دغه طاغوتی احکام او قوانین د الله تعالی پر رالیږلي وحیی باندي بهتر او افضل هم بولي، نو داسی بنده له ډیرو وجوهو نه کافر کیږي:

- یو خو دده کفر له دی کبله دې چه د الله تعالی رالیږلي قانون پرته په نورو وضعي قوانینو فیصله کوي، او ځان د الله تعالی سره په فیصلو او قانون سازۍ کښی شریک او برخمن ګڼي.
- بل دا چه دې هغه حرام کار حلال او روا بولي چه په اسلامي دین کښی یي حرمت او نارواوالې څرګند او ښکاره دې.
- دده د کفر بل سبب دا دې چه دې الله تعالی او د هغه رسولﷺ دروغجن ګڼي؛ ځکه دې د طاغوت حکم د الله تعالی له حکم څخه بهتر او افضل ګڼي.

په دی باید پوهه شو چه ځینی کافران او مرتدان د یو پر ځاي د ډیرو نواقضو او ایمان ماتوونکو مرتکب کیږي، لکه شرک اکبر، د الله تعالی او د هغه

درسولﷺ دروغجن ګڼل، د اسلام مقدس دین سره بغض او کینه کول، د کفارو سره دوستي کول، او داسې نور.

خو څومره چه د یو بنده د کفر اسباب ډیر وي هغومره یي کفر غټ او لوئ وي، نو بناءً یي عذاب هم سخت او لوئ وي، سره له دی چه هغه له ډیرو نورو کفارو سره په ارتداد او له دین څخه په وتنه کښې شریک او یو شان وي.

او کفر په دوه ډوله دې: یو ظاهري او ښکاره کفر دې، او بل باطني او پټ کفر:

ظاهري او ښکاره کفر نه مطلب هغه کفر دې چه د یو بنده له ظاهري او په ښکاره کفري اعمالو څرګندیږي چه دې کافر دې، نو په هغه همغه د ظاهر حکم کیږي.

او باطني کفر هغه دې چه د بنده په پټ حال پوری تړلې وي، یعنی په هغه شیانو کښې چه دده او د الله تعالی ترمنځ وي، نو داسې بنده کله کافر وي؛ ځکه ده به په باطن کښې داسې یو عمل او کار ترسره کړې وي چه هغه به د اسلام او ایمان ماتوونکې وي، سره له دی چه دې په ښکاره خلکو ته د اسلام او مسلمانۍ اظهار کوي، نو په دی وخت کښې دې منافق بلل کیږي، چه په ښکاره ورسره د مسلمانانو معامله کولې شي، او په آخرت کښې به له نورو کفارو سره د جهنم په اور کښې تل ترتله وي.

خو هغه څوک چه ښکاره او د خلکو په نیز دځینو نواقضو او ایمان ماتوونکو ګناهونو مرتکب کیږي، او دده کوم عذر وي، لکه د عقل زایل کیدل،

یا ناپوهي، او یا یو څوک په اسلام کښې نوې شامل شوې وي، نو له خولې یې داسې څه راووځي چه پخوا یې عادت وو، خو دغه دده عقیده نه وي، نو کله کله په دغسې خلکو په ظاهر کښې د کفر حکم کولې شي، حال دا چه په باطن او حقیقت کښې به دده لپاره داسې عذر وي چه د کفر حکم ورڅخه منع کوي.

خو په قیامت کښې به انسان په هغه عقیده راپاڅیږي چه په کومه عقیده باندې مړ وي، که هغه ایمان وي او که کفر وي.

اصل او اساس دا دې چه په یو چا باندي د کفر حکم باید علماء او ددین پوهان وکړي، خو کله کله د ځینې عوارضو او ضرورتونو له امله پر دې اصل باندې عمل نه کیږي.

خو ډیره د پام وړ خبره دا ده چه مسلمان باید په هغه چا باندې چه واضح او ښکاره کافر نه وي، باید په هغه باندې د کفر له حکم کولو او کافر ګڼلو څخه ځان وساتي؛ ځکه رسول اللهﷺ فرمایي:

«أَيُّمَا امْرِئٍ قَالَ لأَخِيهِ: يَا كَافِرُ. فَقَدْ بَاءَ بِهَا أَحَدُهُمَا إِنْ كَانَ كَمَا قَالَ وَإِلاَّ رَجَعَتْ عَلَيْهِ» [مُتَّفَقٌ عليه من حديثِ ابنِ عُمَرَ رضي الله عنهما].

ترجمه: «کله چه یو مسلمان خپل بل مسلمان ورور ته ووایي: اې کافره ! نو یو له دغه دواړو څخه ددې کفر په کلمه اخته شو، که مُخاطَب کافر وو خو همدې کافر دې، او که نه، نو همدا کلمه بیرته ویونکي ته راګرځي».

او له ابو ذرﷺ څخه په یو بل حدیث شریف کښې نقل دي چه هغه

فرمايلي دي:

«مَنْ دَعَا رَجُلاً بِالْكُفْرِ أَوْ قَالَ عَدُوَّ اللَّهِ. وَلَيْسَ كَذَلِكَ إِلاَّ حَارَ عَلَيْهِ». [متفق عليه].

ترجمه: «چا چه کوم مسلمان د کفر په نوم راوبللو(يعنی کافر يي ورته وويلو)، او يا يي ورته وويل: اي د الله دښمنه !، او هغه دغه شان(يعنی کافر) نه وو، نو دغه د کفر کلمه همدی ويونکي ته راګرزي».

دا ويرونه او منع د هغه چا په هکله ده چه داسی کلمی د ښکنځلو په ځاي کوي، او يا د کفر حکم کولو کښی جلتي او تادي کوي، سره له دی چه په ده کښی په يو چا د کافر دحکم کولو دا اهليت نه وي، يعنی دی درجی ته نه وي رسيدلې چه ده ته دا حق حاصل شي چه په يو چا د کفر حکم کولو لايق وي.

خو که يو مجتهد عالم د ضرورت په وخت کښی په يو چا د کفر حکم وکړي، او خطا شي، خو ده په دی حکم کولو کښی کومه کوتاهي او تقصير نه وي کړې، او نه يي هم دا حکم د خپل کوم نفسي خواهش لپاره کړې وي، نو دلته دغه عالم په دغه تحذير او ويرونه کښی نه شامليږي، بلکه دې مجتهد دې، ده ته د خپل اجتهاد يو اجر شته، او خطا به ورته الله تعالی وبخښي إن شاء الله تعالی.

## د مرتد حکم:

د علماو په اجماع باندي د مرتد حکم دا دې چه د مرتد وژل واجب او

فرض دي؛ ځکه رسول الله ﷺ فرمايي: «مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ». [رواهُ البُخاريُّ من حديثِ ابنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما].

ترجمه: «هغه مسلمان چه د اسلام دين بدل کړي اوکافر شي نو يي ووژنۍ».

او هغه څوك چه مرتد مړ شي، نو هغه ته به نه غسل ورکول کيږي، او نه کفن، او نه به پری د جنازی لمونځ کولې شي، او نه به د مسلمانانو په هديره کښی خښولې شي، او نه ورڅخه مسلمان وارث مال په ميراث وړلې شي، او نه به ورته د مرګه وروسته دُعا کولې شي.

او له وژلو مخکښی له ده څخه د توبی غوښتنه او بيرته په اسلام کښی شامليدنه د وخت د مسلمانانو مشر او حاکم اجتهاد ته حواله ده، که ده ورڅخه په رښتيا اسلام ته د اووښتنی اميد کولو، او يا ورسره داسی شبهه وه چه د هغی له کبله مرتد شوې وو، نو بيا مسلمان حاکم ته روا دي چه دغسی مرتد ته دری ورځی مهلت ورکړي، او هغه ته بيرته اسلام ته د ورګرزيدو بلنه ورکړي، او د شبهی د لری کولو کوښښ يي وکړي، نو که اسلام يي راوړ، او مسلمان شو خو ډيره ښه ده، او کنه نو بيا به د ارتداد په حکم ووژل شي.

او که د مسلمانانو د حاکم نظر دا وو چه ددي مرتد په وژنه کښی د مسلمانانو مصلحت او خيرخواهي ده، لکه هغه مرتد چه د مرتد کيدو وروسته مسلمانانو ته ډير سخت ضررناك وي، او دوئ ته ضررونه رسوي،

او يا پر مسلمانانو د کافرانو لخوا جاسوس او مُخْبِر وي، او يا دا ويره ترى کيده چه که ژوندې مرتد پاتى شي نو مسلمانانو ته ترى د ضرر او فتنى ويره ده، نو بيا دي ووژني، تر څو چه يي له وژنى څخه مخکښى توبه ويستلى نه وي.

اللَّهُمَّ أَحْيِنَا مُسْلِمِيْنَ وتَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ، وَأَلْحِقْنَا بالصَّالِحِيْنَ، وأَجِرْنَا مِنْ خِزْيِ الدُنْيَا وَعَذَابِ الآخِرَةِ، رَبَّنَا إِنَّكَ رَؤُوفٌ رَحِيْمٌ.

«اي الله په ژوند کښى مو مسلمانان ولرى، او که مرګ راته راولى نو په داسى حال کښى چه مونږ مسلمانان يو، او د نيکانو مسلمانانو سره مو يو ځاي کړى، او د ددنيا او آخرت له شرم او عذاب څخه مو وساتى، اي پروردګاره ! بيشکه ته ډير رحم کونکې او مهربان يي».

وَصَلَى اللهُ وَسَلَّمَ وَبَارَكَ وَأَنْعَمَ عَلَى خَيْرِ خَلْقِهِ مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ أَجْمَعِيْنَ، وَعَلَى مَنْ اهْتَدَى بِهَدْيِهِ وَاقْتَفَى أَثَرَهُ إِلَى يَوْمِ الدِّيْنِ.